


نهم کال، اوومه ګڼه، پرلپسې ۸۴مه، لړم ۱۳۹۳ل، ذی الحجه ۱۴۳۵ق، اکتوبر ۲۰۱۴م

**دکوم نظام، بنسټ چې په فساداو غداری ایښودل شوي وي، دخیر تمه به ترېنه حماقت نه وي ؟**



**یولړ جهادي مصالح ! !**

**صلیب او کلیسا په ارګ کې !**

**دقلم، لیکوالی او کتاب اهمیت !**

**دایکسپرېس ورځپاڼې دارتداد مجرمانه جرأت !**





**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**



نهم کال اوومه ګڼه – پرلپسې ۸۴ ګڼه – لړم ۱۳۹۳ل، ذی الحجه ۱۴۳۵ق-اکتوبر ۲۰۱۴م

سرليک




## امتياز :

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

## ګڼوت :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلدارې |
| امريکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ |
| | ۲۵ کلدارې |

## يادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه د ليکوال خپل نظر دی .

## پتې :

تخنيکي چارې : عابد مجاهد


کابل : د څرک دفتر

srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم



سرلیکنه :

# دکوم نظام ، بنسټ چې په فساد او غدارۍ ایښودل شوی وي

# د خیر تمه به ترینه حماقت نه وي ؟!

دکابل اداري لپاره ، دامریکا نوي عوض شوي ، واکمن ، ددې لپاره چې دتیرو ۱۴ کلونو په اوږدو کې په ترسره شوو ،امریکایي جرمونو اوغداریو پرده وغورځوي اوخلکو ته ، دیوې مودې لپاره کاذب امیدورکړي ، نو په امورو کې دجدیت اودقانون دپاسدارۍ په نارواوشعارونو یې،یولوی تبلیغاتي کمپاین شروع کړی ، چې په اصطلاح دوحدت ملي ! دولت چې په سر کې اشرف غني او دپخوانی ټلوالې شرمښان قرار لري ، کلک هوډ کړی چې ددولت بنسټونه ، له فساد او درغلیو څخه صفاکوي او قانون نافذوي .

دکابل رژیم ، مبلغین وایي ، په ډیرلنډوخت کې یې مهم کارونه سرته رسولي ، دارګ په اشپزخانه کې یې لازم اصلاحات اونظارت راوستی ، دڅو وکیلانو دموټرونو تورې شیشې یې سپیني کړي او هم یې له یوه روغتون څخه دوه درې تنه ډاکټران اونرسان چې په دنده حاضر نه منفک کړل شوي !!

مونږ کلک باور لرو چې داشرف غني اووحدت ملي دلیوانو ، ټول جدیت اوکارګردګي به همداوي اویابه په همدغه ډول سمبولیکو کړنو کې راڅرخي ، علت یې دادی چې دکوم چتر لاندې دغه مفسدنظام جوړشوی ، هغه چتر دفساد ، خیانت اودمسلمانانو دټکولو اوځورولو ، تاریخي نوم اوسابقه لري ،چې مهم ارمان یې له مسلمانانو څخه ددیني اوملي خودمختاري سلبول اوپه اسلامي ټولنه کې د فحشا، اوفساد رایجول دی اوڅوک یې چې نه مني اواعتراض پرې کوي ، هغه بیا افراطي ، بنسټ پال اوترهګر بولي !

دهمدغه ککړ اواسلام دښمنه چتر (دیمکراسی) لـه املـه ، افغانستان دنړۍ دفاسد ترینـو دولتونو پـه فهرست کې ړومبي مقام ته ورسید .

اوس هم ، همدغه امریکایي دیمکراسی په افغانستان کرغیړنې منګولې خښې کړي او په سیوري کې داشرف غني اوټلوالې له وحشت اوفساده ډک رژیم رامنځته شو اوهماغه ډیرو چې افغانستان ته یې دنړیوال فساد مډال راوړی وو ، په ډیر کم تفاوت سره بیا دافغانستان په ارزښتونو او شتمنیو قابض او دشرمیدلو ټاکنو په ترڅ کې واک ته ورسیدل .

اوس پوښتنه داده چې دامریکایي دیمکراسی په وجود او دهغو ډیرو په شتون اوواک کې چې له سره ترنوکه پلورل شوي بانډونه اودتورې مافیا غړي دي اودافغانستان مسلمان ولس یې دنوم په اوریدولو استفراق کوي ، په کوم پاس اواساس به ددې خاورې اوولس دخیراوخدمت مصدر وګرځي ، په دې تعبیر چې دفسادجرړې به وباسي اوقانون به نافذ کړي؟

یوڅوک چې دامریکایانو دخاصوښکیلاکي اهدافو لپاره ، دافغانستان په خرڅلاو ایله نکوي اودافغانستان دځمکې ، فضا ، سرحدونو او شتمنیو اختیار امریکاته په لاس کې ورکوي اوخپل قوانین ورته په پښو کې ږدي ؛ نوایا لدغه رژیم او واکمنو څخه به دخیر اوغوره راتلونکي تمه ،یوحماقت نه وي ؟

مونږ په ډاګه وایو چې ، فساد دسرمایه داری نظام ، ( دیمکراسی ) اصل اوبنیادجوړوي ، ترهغو چې ددغه نظام اوبنیاد بیخکني ونشي او جرړې یې ونه ویستل شي ، خلک به دواکمن مفسد اوناترسه رژیم څخه هیڅکله دارام ساه وانخلي ، ولسونه به لدې زیات کړوي ، له نور فقر اوبدبختیوسره به یې لاس اوګریوان کوي اومزې اوچړچي به صرف دهغو ګوته په شمیر ذلیلو ډیرو برخه اوقسمت وي چې دامریکایانو بهترین جاسوسان او ترسپوژمو پورې ،په امریکایي غلامي کې ډوب او ننوتي وي ! !

نو افغانان دې هیڅکله داشرف غني په نمایشي رژیم باندې زړه نه تړي ، همدغه اشرف غني دکرزي رژیم دمالیي مقتدر وزیرپاتې شوی ، همدارنګه یې دخارجي مرستو دانسجام مهمه اداره په اختیار کې درلوده ، نوموړی دې ووایي چې په دغو دومهمو مالي برخو کې یې دفساد اودرغلیو دله منځه وړلو په اړه کوم ګامونه اخیستي ، کومه کارنامه یې ترسره کړي او کومه طرحه یې درلوده؟ .

خلاصه داچې ، یوڅوک دخپلې لوړې په دویمه ورځ امنیتي تړون لاسلیکوي ، یعني افغانستان خرڅوی ، له هغه سره بیا دافغانستان غم اودرد نشته ، بلکې مهمه دنده یې هاغه وه چې ترسره یې کړه اوامریکا ته یې یو تاریخي مجوز په لاس کې ورکړ ،چې ترڅویې خوښه وي دافغانستان ،مالامال سرچیني او زیرمي نوش جان کولی شي او له هرډول سیاسي ، اقتصادي اوهراړخیزو ، امکاناتو څخه یې په خلاص مټ استفاده پورته کولای شي .

# امریکا

لطیف عزم

# په خپلو فریبونو،

# کرغېړنه څېره نوره هم رسوا کړه !

امریکایانو په دې ورستیو کې دوه تنه هغه مجاهد افغانان چې له اسلامي امارت سره یې فکري تړاو درلود ، دګوانتانامو دهغو بندیانو چې په قطرهیوادکې میشت دی ، له ملاقات او کتنې ورسته ، دبحرین په هوایي ډګر کې له نړیوالو بین المللي نورمونو خلاف ونیول شول او بیا په ډېرې زبردستۍ دبګرام زندان ته ولیږدول شول.

په دغو دوتنو کې یو دافغانستان دنامتو جهادي ، علمي او ملي شخصیت ، مجاهد کبیر( مولانا جلال الدین حقاني ) حفظه الله کشرى ځوى ، محمد انس حقاني او بل دګوانتنامو زندان څخه دراخلاص شوو اسیرانو په جمله کې داسلامي امارت دیوتن پیاوړي مجاهد مولوي محمد نبي ورور ، حافظ عبد الرشید وو.

دمحمد انس حقاني او حافظ عبد الرشید ،پرته لدې چې قطرته دراخلاص شوو اسیرانو دیدار او ملاقات ته ورغلي وو ، بل یې هیڅ کوم سیاسي او پټ مقصد او سرګرمي نه درلوده.

امریکایانو هم دګوانتانامو بندیانو دازادولو په مهال دقطرهیواد ته په لیکلي بڼه باور ورکړی وو چې داسیرانو دوستان او نیږدې خپلوان کولای شي چې هغوی له نیږدې وویني او قطرته ورشي.

ولې امریکایانو دخپل ابدي ناولي عادت او کثیفو اخلاقو له مخې لنډ په لنډه خپل نوموړي تعهد او وعده وختل او دیوه پلان شوي فریب او دسیسې په اچولو یې کرغېړنه څېره نوره هم رسوا او شرمنده وګرځوله.

له بل لوري دکابل غلامې اداري دملي وحشت ، ډنډرچیان ددې پرځای چې اول خپل شاخ لرونکي دروغ لږ وسنجوي او ترڅو ورځویې ددوام اړخونه په پام کې ونیسي او یا له خپل بادار سره پرې مشوره وکړي ، یوناڅاپه یې داکاذیبو او وچو دروا غو بوجیانو راخلاصي کړي ، چې ګواکې ددوئ دخاصو عملیاتو په ترڅ کې ، دمولانا جلال الدین حقاني ، ورور( نصیر الدین ) یې په خوست ولایت کې نیولي، په داسې حال کې چې دجناب حقاني صاحب دنصیرالدین په نامه هیڅ کوم ورور، نلري ، بلکې یوزمریالی ځوی یې دډاکټر نصیر الدین په نامه وو ، چې هغه تیرکال دامریکایانو له لوري په شهادت ورسول شو ، دکابل وحشت ملي اداره چې کله په دغو دروغو کې پاته راغله او په تعقیب یې داسلامي امارت مستنده او په واقعیتونو برابره اعلامیه هم خپره شوه ، نو بیا یې له امریکایانو څخه دمحمد انس او حافظ عبد الرشید تصویرونه راواخیستل چې ګواکې هغوئ ورسره په لاس او اسارت کې دي ، په داسې حال کې دکابل اداره دهغوی دنیولو په موضوع کې هیڅ اګاهي نه درلوده او نه یې هم په اختیار کې دي.

د محمد انس او حافظ عبد الرشید ، په نیولو سره که امریکایان او یاد کابل حلقه بګوشه اداره دا سوچ کوي چې اسلامي امارت او هم د محترم حقاني صاحب ، مجاهدې کورنی ته په لویې صدمې سربیره ، ځان له راتلونکو جهادي تکتیکي عملیاتو او پروګرامو نو خبر کړي او یا به یې مخ ډب کړي ، فکر کوو چې دوئ په خپل دغه شیطاني سوچ کې سخت تیروتلي او صرف یو خیال پلو یې کړی.

دا منو چې دیوه وړوکي مجاهد په اسیر کیدو هم اسلامي امارت او هم د حقاني صاحب کورنی دلویې صدمې احساس کوي او پرې ځوریږي ، خو دغه ځوراو صدمه هیڅکله په دې معنا او تعبیرنده چې ګواکي له هغو سره ، به په جهادي تکتیکونه او پلانونو کې ، خنډ او ځنډ رامنځته شي ؛ ځکه د روان جهاد او اسلامي امارت اتکا او بروسه په اشخاصو او څو مشخصو نوموړو نو باندې نده ، بلکې توکل په الله تعالی او د هغه په غیبانه نصرت ده ، او کوم صف او تړولی چې له دغې عقیدې او معنوي وسلې څخه برخوردار او پرې سنبال وي ، هلته بیا هر مجاهد ، محمد انس او حافظ عبد الرشید کیدلای او جوړیدلای شي او د هغو تشه او کمی ډکولای شي.

تاسې وګورئ ، کله چې امریکایانو او کفري ایتلاف په افغانستان یرغل پیل کړ ، د اسلامي امارت په نورو کلیدي مشرانو سربیره یې د مشر حقاني صاحب په خلاف هم د خپلو ځمکنیو جواسیسو په مرسته بې شمیره چاپې او هوایي بریدونه ترسره کړل ، دښمن ، فکر کاوه چې د یو حقاني صاحب په نیولو او شهیدولو سره به د هیواد په یوه مهم استقامت کې د جهاد جوش او جذبه ، الله مکړه خاموشه او کمزوري کړي ، خو ساتونکي رب جل جلاله ، هم تردې دمه مشر حقاني صاحب د دښمن له دغو شوموعزایمو وساته په عوض کې الله تعالی د حقاني صاحب له ځامنو او د کورنی له نورو غړو څخه دومره ستر جهادي او محوري کار او خدمت واخیست چې دښمن یې هیڅ ډول اټکل او خیال نه وکړی.

همدا رنګه مکار غلیم فکر کړی وو چې د جناب حقاني صاحب د زمریالي ځوی ډاکټر نصیر الدین ، په شهادت به جهاد ته لویه صدمه ورواړوي او دوئ به تریو څه وخت پورې د ارام ساه واخلي ، خو ولیدل شول چې د شهید نصیر الدین د شهادت برکات او د جناب حقاني صاحب د اخلاص او دعاوو په توسط نه دا چې په روانو جهادي تکتیکونو او روحیې کې کومه خاموشي راغله ، بلکې الله تعالی د جهاد میدان نور تود او کفر ځپونکی وګرځاوه.

مونږ امریکایانو او د کابل غلام رژیم ته وایو چې نور ستاسې ټول دامونه او مخامخ حربې شنډې او له کاروغور ځیدې ، اوس همدغه د پټو او ذلیلو د سیسو یوه لړی درته په مخ ایښې ده چې څوک د قطر بندیانو دلیدلو او کتلو لپاره ځي ، هغوئ تعقیب او بیا یې په هوایي ډګرونو کې ونیسي او د بګرام زندان ته ولیږدوي.

فکر کوو چې دا به ستاسې د ذلالت او شکست خورده حالت یو ورستی او ښکاره انځور وي، چې نړۍ او افغانو ته موور وښود او یا یې وروښیي.

دغه ډول شیطاني لومې او دامونه په هیڅ بیه ستاسې په قوت او بیداري دلالت نکوي ، بلکې هر څوک پوهیږي چې د اسلامي امارت له مجاهدو غړو څخه ولو که ټیټ رتبه کسان هم وي څومره ورنه په بیم او ویره کې یی !!

امریکایان بائید په دې خبره ځان پوه کړي چې ورستی نیونې به د دوی لپاره درنې او منفي پایلې ولري او لدې ورسته به یې هر نوعه تعهدات او ژمني د اعتبار او باورو ړنه وي.

# صلیب او کلیسا په ارګ کې!

لیکوال: عبد الرحمن مدني

له کله نه چې اشرف غني ته د افغانستان نیمه واک سپارل شوی، له هغه راهیسې د اسلام سپېڅلي دین سره د بې باکانه چلند لړۍ پیل شوې ده، دا سې چلند، چې د اسلام د مبین دین سره ګستاخانه او توهیني سلوک بلل کېږي. دا لړۍ بیلا بېلې بڼې لري، کله د ګوډ شیطان اتمر د جرأت په بڼه؛ کله د یوې محلي او محدودې ورځپاڼې «افغانستان ایکسپریس» د توهیني لیکنې او کله د مجید قرار غونډي د یو سپک ټوکمار د ټوکو په شکل وي او تر دې ټولو ناوړه او له افغان تاریخ سره په ټکر کې ستره نادوده لا دا ده، چې خپله په ارګ کې دننه صلیب ته سجدې پیل شوې. دا هر څه په بې ساري توګه د یوې میاشتې په بهیر کې دا سې مسلسل پیل شوي، لکه مخکې له مخکې چې پلان شوي او پروګرام شوي وي، چې ګواکې په تدریج سره به د دین په خلاف د مسلسلې مبارزې په شکل پر مخ وړل کیږي.

له لومړۍ ورځې څخه چې د ولسمشریزو کاندیدانو تر منځ د کمپاین لومړنۍ شیبې وې؛ نو دا خبره هر چېرته تر غوږو کېده، چې ګنې د اشرف غني میرمن عیسوۍ ده او پخپله اشرف غني هم د خپلې میرمنې د دین څخه د عقیدې تر حده اغېزمن دی. له همدې کبله وه، چې نوموړي د خپلې میرمنې نوم د رولا غني څخه په «بي بي ګل غني» واړاوو او له دې سره جوخت یې دا اوازه هم واچوله، چې ګواکې هغه مسلمانه ده. په دې برخه کې د نوموړي د فیسبوکي کمپاینرانو استدلال دا وو، چې هغې په یوه انتخاباتي غونډه کې د قران کریم څو آیتونه تلاوت کړل؛ نو ګواکې مسلمانه شوې او دې ته یې د اشرف غني د یو بل کمال او لاسته راوړنې په سترګه کتل.خو چې کله اشرف د نیمه واک ولسمشر سو، دا دی هر څه په ډاګه سول او هغه دا چې رولا غني اوس هم رولا ده؛ په خپل دین پاتې ده او دا په تاریخ کې لومړی ځل دی، چې د افغانستان لومړۍ ښځه یوه نصرانۍ او د بهرني هېواد تبع ده او افغانستان ته تر راتګ مخته یې خپل مېړه او اولاد په خپل رنګ اړولي وو ،او هر وخت به یې هغوی له ځانه سره کلیسا ته بېول.

که څه هم په دې وروستیو کې د رولا غني د زامنو له خولې دا را ووتل، چې ډیډي «پلار» به هر وخت د خپلې کورودانې سره کلیسا ته تګ راتګ کاوه؛ خو د دې پته ونه لګېده، چې ایا اشرف غني هم کله رولا د مسجد په لور بیولې او ایا هغې ته یې هم یو وخت د اسلام د مبین دین دعوت ورکړی او کنه.؟! که له یوه اړخه خپله اشرف غني په دین کې سست مالومیږی؛ خو ویل کیږي چې رولا غني هم د تعصب او افراطیت تر حده د نصرانیت پیروې ده او په ډېرو

تبشيري (عيسويت ته د تبليغ) مؤسسو کې غړيتوب هم لري او په پام کې لري، چې د همدې مؤسسو له لارې د افغانستان د مظلومو ښځو لپاره اواز اوچت کړي او د هغوی د مظلوميت څخه په استفادې خپل تبشيري عمل لاګړندی کړي.

د اشرف غني لور او زامنو په اړه تر اوسه هيڅ بحث نه دی شوی؛ خو ويل کيږي چې لور يې يو هنرمنده ده، د لويديځي نړۍ او د خپلې کورنۍ د بې باکانه ژوند دود له امله، چې کومې جامې اغوندي هغه په هيڅ توګه د افغانستان او افغان کلتور نمايندګي نه کوي.

دا خو نو اوس معلومه خبره ده، چې د افغانستان لومړۍ ميرمن يوه متعصبه نصرانۍ ده؛ خو په دې اړخ تر اوسه چا رڼا نه ده اچولې، چې دغه متعصبه نصرانۍ به خپل عبادت چيري ادا کوي. ځکه افغانستان کې خو د لويديځ په څېر کليساوې نشته، چې اشرف غني به يکې خپله کورودانه په موټر کې د کليسا تر دروازو رسوي، دا سې چې ښځه به يې موټر کې سپره کړې وه، غاړه په غاړه به د کليسا مختــه ودريدل او د کليسا د پاپ څخه به يې د پيسو په بدل کې د خپلو تيرو ګناوو د بخښنې چيک اخيست، اوس په دې وطن کې هغه کليسا چېرته وي او متعصبه نصرانۍ به خپل عبادت چيري ادا کوي.

رولا غني له بي بي سي سره په يوه وروستی مرکه کې، چې په انګريزي يې خبري کولې، په دوه مخي سره وويل، چې ټول د يو خدای عبادت کوو، خو هر سړی يې په خپل طرز او طريقه باندي کوي او په دې يې اعتراف وکړ، چې اوس هم نصرانۍ ده، مطلب د تثليث يا دريو خدايانو معتقده ده؛ خو دا يې ونه ويل چې اخر، دا به دا خپل عبادت چيرته کوي. له کله نه، چې اوسني نيمه ولسمشر اشرف غني ته د لومړي ځل لپاره په ديموکراتيکه توګه قدرت انتقال شوی، له دې سره جوخت د «لومړۍ ځل» تکرار هم زيات شوی. د ساري په توګه، د لومړي ځل لپاره يو حکومت دوې کابينې چلوي، د لومړي ځل لپاره نيم افغانستان يو تن ولسمشر بولي او دوهمه نيمايي بيا د بل ولسمشر اتباع دي.

خير دا «سياسي لومړي ځلونه» به نه تکراروم؛ خو د لومړي ځل لپاره د تيري جونز پلويانو په يوه افغانۍ ورځپانه کې الله، د هغه رسول او د هغه دين او شريعت ته سپکاوی وکړ او د هغه تر مخه د لومړي ځل لپاره د ولسمشر د امنيتي سلاکار په توګه يو لوړ رتبه مامور ددې جرأت وکړ، چې د اسلام مبين دين ته منسوب مدارسو او ادارو د بندولو ګواښ وکړي او له هغه وروسته د لومړي ځل لپاره په دين ملنډې وهونکی کس امريکا ته غوښتل کيږي او هلته دا سې خبرو ته هڅول کيږي، چې په پوره صراحت او وقاحت سره د الله جل جلاله په انصاف باندي نيوکه کوي او د فيسبوک د مشر مارک زوکبرګ انصاف د الله جل جلاله تر انصاف پورته بولي او وايي چې فيسبوک ښځي ته هغه حق ورکړی چې الله پاک نه دی ورکړی، او ښځه يې د سړي په نيمايي کړې. (نعوذبالله)

د «لومړي ځل» دا تکرار بالاخيره موږ تر دې را رسوي، چې د لومړي ځل لپاره د افغانستان «لومړۍ ميرمن» نصرانۍ ده، د «لومړي ځل» لپاره د ارګ استوګنه مېرمن «نصرانۍ ده»، په «لومړي ځل» به ارګ ته صليب د عبادت لپاره ننوزي او د «لومړي ځل» لپاره به په ارګ کې کليسا جوړيږي او دا چې د کليسا چلول بې پاپه ناشوني دي، نو لنډه دا چې په «لومړي ځل» به په ارګ کې پاپ هم استوګن کيږي او دا لړۍ به تر دې پورې لا غځيږي، چې په «لومړي ځل» به د ارګ په انګړ کې په خلاص مټ، ښکاره يا پټ د صليب عبادت کيږي.

باید ووایم، چې په ګوګل کې له لږ پلټنې وروسته ماته دا معلومه شوه. چې په افغانستان کې تر اوس مهاله په رسمي بڼه یوه کلیسا هم نشته، وروستۍ کلیسا د ۲۰۱۰ کال په مارچ میاشت کې ړنګه شوې او له هغه راهیسې کلیساوي یوازې د امریکایي ځواکونو تر نظامي مرکزونو، پي آر ټي ګانو او سفارتونو پورې محدودې شوې دي. کوم وخت چې دا پیښه وسوه، له هغه راهیسې د صلیب پیروانو او تبشیري مؤسسو ته هم ځمکه سره تبۍ ګرځېدلې. هغوی خو دا فکر کاوو، چې د امریکایي پوځیانو په شتون او د امریکا په شمول د ټولې غربي او شرقي نړۍ تبشیري مؤسسې به په دې وتوانیږي، چې اقلا د کابل رنګ بدل کاندي او د کابل مسجدونه په کلیساوو بدل کړي، خو د ډیرو لاملونو له کبله چې عمده یې د افغان ولس پر اسلام مینتوب او کلکه عقیده ده، هغوی ونه وتوانیدل چې په خپلو په شومو اهدافو کې بریالي شي، بلکې هغه زوړ حال هم پر خپل حال پاته نشو او هغه یوازینۍ کلیسا هم، چې نصرانیان به د عبادت لپاره ورتلل، ونړول شول، ځکه نو دوی له هغې ورځې راهیسې د یو داسې کس په لټه شول، چې د دې هر څه د کولو وړتیا ولري، همدا وړتیاوې یې ټولې په اشرف غني کې وموندلې، هغه څوک چې ښځه یې نصرانۍ ده، خپله هم د نصرانیت څخه د عقیدې تر حده متاثره د او دا هم ورته مهمه نه ده چې اولاد یې د اسلام لاره غوره کوي او که د نصرانیت؛ له همدې کبله یې نو په نوموړي پیسې ولګولې، هغه یې د نړۍ دوهم ستر مفکر او د ورانو او ویجاړو هیوادونو دبیا رغوني مسیحا ونوماوه او له ده څخه یې د افغانانو په نظر داسې یو جادوګر جوړ کړ، چې د افغانستان ټولې مسئلې به په یوه چومنتر حل او هر څه به ګل وګلزار کړي؛ خو اصلي هدف یې ارګ ته صلیب د ننه کول، په ارګ کې کلیسا جوړول او د صلیب لپاره د ارګ څخه کمپاین پیلول وو، تر څو خو یو له یوه اړخه د افغان ولس څخه انتقام واخلي، او دا ورته ووایي چې تاسو کلیسا په کندهار، هرات، کابل او مزار کې نه پرېښوده او آن د کابل وروستۍ او یوازینۍ کلیسا مو هم ونړوله، نو مونږ به همدا کلیسا ستاسو د واکمنو په زړونو کې، ستاسو د واکمنو په بسترو کې، ستاسو د واکمنو په کورونو کې او ستاسو دواکمنو په ماڼیو کې جوړې کړو، تر څو ستاسو «اشراف» د صلیب سره عادي شوي نه وي، تاسو ورسره هېڅکله نه عادي کېږئ.

او تر څو وکولای شي، چې صلیب ته تبلیغ په اسانۍ سره وکړلای شي او د افغاني ټولنې اساس چې ښځې او میرمنې جوړوي، پر هغوی باندې هم په رسمي ډول د «لومړۍ میرمنې» په سرپرستي کار پیل کړي او د هغو له لارې د هغوی په اولادونو او خاوندانو باندې کار وکړي.

الله جل جلاله فرمائي: (وإذ يمكر بك الذين كفروا ليثبتوك أو يقتلوك أو يخرجوك ويمكرون ويمكر الله والله خير الماكرين (۳۰ سورة الانفال).

ژباړه: هغه وخت هم د یادونې وړ دی چې د حق منکرانو ستا پر خلاف دسیسې جوړولې چې تا بندي کړي، یا دې ووژني یا دې له وطنه وشړي، هغوی خپل تدبیرونه په کار اچول او الله خپل تدبیر کاوه او الله تر ټولو ډېر ښه تدبیر کوونکی دی.

# آیا میدانید پیامبر صلی الله علیه وسلم در خانه اش چگونه بود؟



خانه هر فرد، ملک حقیقی اوست که خوش رفتاری، ادب، حسن معاشرت و اصالت او، در آن آشکار می شود. او، در خانه وپشت دیوارها قرار دارد و هیچکس او را نمی بیند و با خادم وهمسرش بدون هیچگونه تکلف و تعارفی بر اساس سرشت اصلی خود رفتار می کند. او این رویه را در حالی دارد که همه کاره این خانه است و تمام زیرد ستانش افراد ضعیفی هستند.

اکنون رهبر و معلم این امت را ببینیم که با وجود جایگاه و منزلت بالایی که از آن برخوردار است، در خانه اش چگونه رفتار می کند. از عایشه صدیقه رضی الله عنها پرسیدند: رسول الله صلی الله علیه وسلم در خانه چه کار می کرد؟ گفت: بشری مانند سایر افراد بشر بود. لباسش را می دوخت، گوسفندانش را می دوشید و خودش کارهایش را انجام می داد. ]روایت احمد وترمذی[او نمونه توضع و فروتنی بود؛ تکبر نمی کرد، به دیگران دستور نمی داد که کارهایش را انجام دهند و در کارهای خانه مشارکت می نمود و کمک خوبی برای خانواده اش بود. مشاهده می کنیم که همه این کارها را برگزیده فرزندان آدم انجام می دهد. بله! در خانه ای که نور این دین از آنجا نورافشانی می کند، حتی آن مقدار خوراکی هموجود ندارد که رسول اکرمr را سیر کند.

نعمان بن بشیرtکه درباره نبی اکرمr سخن می گفت، فرمود: «پیامبر شما را در حالی دیدم که خرمای خشکی هم نمی یافت که شکمش را سیر کند». [روایت مسلم] عایشه رضی الله عنها می گوید: «ما اهل بیت محمد صلی الله علیه وسلم یک ماه آتش روشن نمی کردیم؛ غذای ما، آب و خرما بود». [روایت بخاری] همچنین هیچ چیز، نبی اکرم r را از عبادت بازنمی داشت؛ هرگاه ندای حی علی الصلاه وحی علی الفلاح را می شنید، به سرعت اجابت می کرد و دنیا را پشت سر می گذاشت. اسود بن یزید می گوید: از عایشه پرسیدم: نبی اکرمr در خانه چکار می کرد؟ گفت: «در خدمت خانواده اش بود. به محض اینکه صدای اذان را می شنید، بیرون می رفت». [روایت بخاری] درباره نبی اکرمr نقل نشده که یکی از نمازهای فرض را در خانه خوانده باشد مگر هنگامی که بیمار شد و تب او شدت گرفت و نتوانست از خانه بیرون برود و آن هم در بیماری وفاتش بود.

رسول خدا با وجود مهربانی و شفقتی که نسبت به امتش داشت، درباره کسانی که نماز جماعت را ترک می کنند، الفاظ تندی به کار برد و فرمود: «لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ بِالصَّلاَةِ فَتُقَامَ ثُمَّ آمُرَ رَجُلاً فَيُصَلِّيَ بِالنَّاسِ ثُمَّ أَنْطَلِقَ مَعِي بِرِجَالٍ مَعَهُمْ حُزَمٌ مِنْ حَطَبٍ إِلَى قَوْمٍ لاَ يَشْهَدُونَ الصَّلاَةَ فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ». [روایت بخاری و مسلم] یعنی: «تصمیم گرفتم دستور دهم تا نماز، اقامه گردد، سپس به مردی دستور دهم تا برای مردم امامت دهد، آنگاه گروهی را با دسته های هیزم با خود ببرم و کسانی را که به نماز جماعت نمی آیند، با خانه هایشان آتش بزنم. باید توجه داشت که حدیث فوق اهمیت نماز جماعت را می رساند. همچنین نبی اکرمr فرمود: «مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْ فَلاَ صَلاَةَ لَهُ إِلاَّ مِنْ عُذْرٍ».[ابن ماجه و ابن حبان] یعنی: «هر کس صدای اذان را بشنود و اجابت نکند، نمازش پذیرفته نمی شود مگر اینکه عذری داشته باشد. قابل یادآوری است که علما، فقط ترس و بیماری را عذر دانسته اند. اینک کجا هستند کسانی که کنار همسرانشان، نماز می خوانند و مساجد خدا را ترک کرده اند؟ آیا آنها معذورند؟ (سیمای اسلام)

دهغو مر اکزو نږولو ته متې بلهوهلي

# چې الله تعالی يې ساتندوی اونگهبان دي

عبيد عزيز

له اتمر وړاندې دکرزي ادارې امنيتي سلاکار (سپنتا) څوکاله وړاندې له طلوع تلويزون سره په يوې ځانگړې تفصيلي مرکه کې په دو اسلام دښمنه ټکيوپه صراحت سخوندوواهه اووې ويل : مونږ افغانان بايددهرهيواد او ولس په اړه كه هغه اسلامي وي كه غيري اسلامي ، دخپلوگټواومصلحتونوپه رڼاكې قضاوت ولرواوكه ممكنه وي دفاع ترينه وكړو، دهغه په اند، دفلسطين موضوع يادمسلمانانودړومبى قبلې ( بيت المقدس ) دگټلواونيولوداعيه بايددافغانانوپه ژبه زمزمه نشي ، ځكه يوخوافغانان ددغې فتحې لپاره وزگاراوفارغ ندي اوخپلې بلا لانجې اومشكلات لري ،له بل لوري دبيت المقدس له گټلوڅخه عربي هيوادونه هم نورلاس په سر اوچمتوندي چې دنومورې موضوع په سر له نوري

نړې يعني غرب اوامريكاسره خپلې گټې اوپرمختياوي په خطركې وغورځوي ، دسپنتامطلب داوه چې افغانان له خپلوافكاروا وجذباتوڅخه داسلامي اخوت اوورور گلوی توري ليري کړي ، دفلسطين دمسلمان ولس په خلاف داسرائيلودغاصب رژيم په يرغلونو اوتاړاكونوسترگې پټې كړي اوهم دمسلمانانودړومبى قبلې دگټلومبارزه صرف دفلسطين دمظلوموپرگنوكاروبولي .

دسپنتاپه دغوخبرو او كفرياتومې په هغه مهال په زوراوزير سوچ وواهه چې دكوم مجبوريت له مخې دكابل رژيم، ترټولومطرح اوذی رايي كس له خولې راووتلي ، ځكه دنړی له يوه مسلمان نماواكمن څخه مې هم تراوسه دغه ډول تصريحات نه وو اوريدلي ، خوهغه اصلي جرړې ته ونه رسيدم ، نو په هغه مهال مې يوه خبير ملگري ته دسپنتاله گمراهی ډكه مركه ذكركړه ، ملگري راته وويل چې عجيب سړی يې ! ته تراوسه پورې دكرزي امنيتي سلاكار نه پيژني ، داخودامريكا، المان او هندوستان مشترک جاسوس اوهم د اسراپيلو دهغې خاصي يهودي پروژې سركښ دی چې په افغانستان كې په فعاليت لگياده ، نو چې يوڅوک دځلوروهغو هيوادونو چې له اسلام اومسلمانانوته يې شپه ورځ ويني په جوش اوخوټيږي اوكينه يې نه سړيږي استاځی اونماينده وي ، نو هغه به خامخاله خپلې پليدې خولې څخه دغه ډول منحوس ټكي په صراحت راباسي اوله بل اړخه يو څوک چې دكابل د ولسمشر- امنيتي سلاكار ټاكل كيږي اروموبه ددغو هيوادونومشهور او منل شوی نوكر وي .

كله چې اشرف غني دولسمشري لوړه وكړه ، نوړومبى ټاكنه يې دسپنتاپه ځای دپخواني كمونيست صاحب منصب (حنيف اتمر) د امنيتي سلاكار په توگه انتخاب وو ، مافكر وكړ چې كه اتمر هرڅومره بداوكرغيړن وي له سپنتاڅخه به په دې ښه وي چې داسلام دمقدساتوپه خلاف به له

ړاګیزي دښمنی ځخه لرې ځان په ځنګ ساتي ، خوخبرنه وو چې داتمر ارتداد اوبې دیني له سپنتاڅخه ځوګوتي وړاندې وه .

اتمر په دې سربیره چې دافغانستان دخرڅلاو قباله یې له امریکایانوسره لاسلیک اوور و سپارله ، په خپله ږومبی مرکه کې چې دهندوستان ، له (دیلی پالیسی) مجلې سره کړې ، په خورا پلیته ژبه یې دالله تعالی دښمنی ته سینه وډبوله اوپه ډاګه یې کړه چې مونږ اونړیوال بایدپه ګډه ددیني مدرسوتعقیب اوڅارلوته اولیت ورکړو اوپه جنوب ختیځه اسیاکې دهغولسګونواوسوونو مدرسو دتړولواوبندولولپاره عملي ګامونه پورته کړوچې هلته دجهادذهنیت اوروحیه شاګردانوته ورکوي اوبیایې افغانستان، عراق ، سوریی اونوروهیوادونوته استوي .

اتمر چې اوس ځان امریکااوغربي نړۍ ته دامنیتي تړون په لاسلیک وفاداراوله نورونیږدې نوکرښکاري، ددیني مدارسودبندولوشیطاني دام ته ځکه لاس اوږدوي چې فکرکوي په دې سره به دبوش هغه د۲۰۰۱ کال خبره بیرته راژوندی کړي چې په افغانستان کې روانه جګړه به اوږده ، هراړخیزه اوصلیبي رنګ ولري .

خو اتمر بایدپه خلاصوغوږو داخبره واوري چې هیڅ دیني مدرسه نفرت ، جګړه اوداوربلولوتلوسه اوتربیه ګاه نلري ، بلکې هلته فقط داسلام مقدس دین لوستل کیږي اودنوی نسل زوړنواوافکاروته دهغه دین اوشریعت رڼا داخلیږي چې څوارلس سوه کاله پخوا دالهي وحي په زریعه داسلام په سترپیغمبرحضرت محمدصلی الله علیه وسلم باندې نازله شوی .

هو ! په دغو مدارسواونورو دیني مراکزوکې داسلام داحکم په ډیرصراحت اوښه تشریح لوستل کیږي ، چې که یو کافرپه کوم اسلامي قلمرو اوهیوادباندې یرغل راوړي ، نه داچې تریرغل لاندې ګیرمسلمان ولس باندې جهادفرض دی ، بلکې دامت په ټولو پرګنو اومسلمانانوباندې د مظلومو مسلمانانو ننګه او مرسته فرض اولازمي امر دی .

امریکاسره له ۴۹ هیوادونو په تشوپلمودافغانستان حریم اوحرمت یرغمل کړی اواوس دادی د( دافغانستان دخرڅلاو ) معامله هم داتمر پّ ګوتور ترسره شوه ، نو که اوس ددغو متجاوزینو او ظالمانو په وړاندې څوک توره راپورته کوي ، له شک پرته دایودیني امر اوملي فریضه ده .

اوکه اتمر ، چیرې په الهي کتاب باور لري دقرانکریم دالحجرپه ۹ ایت کې الله تعالی فرمایي : إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ،یعني الله تعالی حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته داډ ورکوي چې مونږ په تاقرانکریم نازل کړی اومونږ به دقرانکریم ساتنه هم کوو .

په دیني مدرسو کې قرانکریم اوهغه احکام اونبوي احادیث چې له قرانکریم څخه مستنبط شوي ویل کیږي او تدریس یې کیږي ، نو چې الله تعالی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته دقرانکریم حفاظت اوساتنې ډاډورکوي چې څوک تحریف اوتغیرنشي پکې راوستلای ، دهغو مراکزو او مدرسو چې دقرانکریم حافظان اودنبوي احادیثو طالبان پکې اوسي کلک باور اوعقیده شته چې الله تعالی به یې له هرډول ظالمانواودامریکاد جاسوسانوله کینواو شومو عزایموڅخه ساتي اونجات به ورکوي .

قاري عبدالولي صديقي

# د غوري (شنسباني) پاچاهانو له خوا

# د رسول الله (ص) د اولاد په اړه د بنو اميه و د فرمان ترديد

د رسول الله a اولاده، چې د حضرت فاطمې k له نسل څخه ده، د سيدانو (ساداتو، پاچا صاحبانو، آغا صاحبانو) په نوم يادېږي، همداسي د علويانو (د حضرت علی رض اولاده د نورو بيبيانو له نسل نه) ، د خواجه ګانو (د حضرت ابوبكر صديق رض) اولاده)، د حضرتانو يا مجدديانو (د حضرت عمرفاروق رض اولاده) او د عباسيانو يا خواجه ګانو (د حضرت عباس رض عنه اولاده) په اسلامې ټولنه كې د زيات احترام او درنښت وړ دي، په ځانګړي ډول په افغانستان كې ورته له ډېر پخوانه د احترام او درنښت په ستركه كتل كيږي. دسيدانو مينه د افغانانو په خټه كې پرته ده، تاريخ په دې ګواه دی، چې افغانانو له همدې ساداتو سره زياتې مرستې كړي، او له هغوی سره يې هيڅ وخت مخالفت نه دی كړی. تر دې پورې چې كله د امويانو او عباسيانو په منځ كې دښمنۍ اوج ته ورسيده، نو عباسيانو د خراسان لوري ته مخه وكړه، د خراسان چارواكو چې هغوی اهل تسنن دي، ورسره د سيدانو سره د مينې له امله هر راز مرستې وكړې، تر څو عباسيان يې د خلافت مقام ته ورسول.

طبراني په كبير كې د عبدالله بن عباس رض يوه واقعه را نقل كړي ده. راوي وايې زه په مجلس كې ناست وم، چې حضرت معاويه h له حضرت عبدالله بن عباس i څخه پوښتنه وكړه اې ابالعباس! آيا ستاسو دولت شته؟ هغه وويل: اميرالمؤمنينه! معاف مې كړه. معاويه h وويل: حتماً به حال راكوي؟ هغه وويل: هو! پوښتنه ترينه وشوه نو ستاسو انصار څوک دي؟ هغه وويل: اهل د خراسان.

عن أبان بن الوليد بن عقبة بن أبي معيط، قال: قدم عبد الله بن عباس على معاوية وأنا حاضر، فأجازه فأحسن جائزته، ثم قال: يا أبا العباس، هل تكون لكم دولة؟ قال: أعفني يا أمير المؤمنين. قال: لتخبرني. قال: نعم. قال: فمن أنصاركم؟ قال: أهل خراسان،

له خپل پيغمبر، اسلام او د هغه (ص) له آل، اولاد او صحابه كرامو سره ډير خلک د مينې اظهار كوي، ولې ځيني قومونه يا هيوادونه د زور په مقابل كې په آسانه ماتې ومني او له ظاهري مينې څخه لاس په سر شي.

خو په دې لاره كې له مذهبې شعايرو او مقدساتو سره د افغانستان د غوري سلاطينو حقيقې مينې او د رښتيا اخلاص، ځانګړی امتياز درلود او دغه حقيقت د

دوی د ایثار او فدا کارۍ له مخې د تاریخ په پاڼو کې ثبت او څرګند دی، چې له هغې جملې څخه د الله د رسول حضرت محمد (ص) له آل او ځوځات سره د غوري پاچاهانو رښتیانۍ دوستې او محبت دی، ځکه د اسلامي واک په لومړۍ پیړۍ کې چې د خلافت له امله د څلورم خلیفه حضرت علي (رض) او د ده د زوی حضرت حسین (رض) او د بنو امیه پاچاهانو تر منځ اختلاف راغی، چې په پای کې له آل بیت سره د بنو امیه وو د زیات حسد او عداوت په نتیجه کې حضرت حسین (رض) د خپلې کورنۍ له اویا کسانو سره د حق غوښتلو په لاره کې د بنو امیه وو له خوا په شهادت ورسیدو او پردې بر سیره د بنو امیه وو خلیفه ټولو اسلامې مناطقو ته داسې احکام او فرمانونه صادر او ولیږل، چې د جمعې په ورځ چې خطیب پر منبر باندې د جمعې خطبه وایې نو حضرت علي (رض) او د ده ځوځات ته دې ناوړه الفاظ او د لعن کلمات استعمالوي.) او د بنو امیه د امپراتورۍ په ټولو سیمو او د اسلام په ټولو ښارونو کې دا احکام عملي شول، هر خطیب چې به د جمعې په ورځ د جامع پر منبر باندې خطبه ویله یو ځل به یې څلورم خلیفه او د هغه ځوځات ته د شتم او ښکنځلو الفاظ او د لعن کلمات ویل. دوی به دلیل ویل، چې د نسب سلسله د پلار له لوري ثابتیږي، او د لور لخوا د نسب سلسله څه شرعي حیثیت نه لري، عالمانو ورته په خپل وخت کې ګڼ ځوابونه وویل، ولې دوی به نه منل.

همداسې بل لوري ته شیعه ګانو، خوارجو او نورو ډلو به بیا په ځینې صحابه کرامو لکه حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان، حضرت امیر معاویه او نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم پسې بد ردو ویل.

د غور پاچاهانو د خپل فطرې شجاعت او اسلامې او دینې غیرت او لوړ حمیت له کبله د خپل پیغمبر ټول اولاد او صحابه کرامو ته په احترام قائل وو، نو ځکه یې د پیغمبر ص د پاک ځوځات په نسبت د بنو امیه وو دا ناروا او د دوی له افکارو سره مبائن احکام هیڅ کله ونه منل.

په داسې ډول چې د افغانستان د غور د سیمو او مربوطاتو د جامعو مسجدونو پر منبرونو د بنو امیه وو د فرمان احکام عملې نه شول. او د هغوی دغه فرمان او امر ته یې په کلک دریځ ځواب ور کړ او په دغه باب د غوري پاچاهانو د تاریخ لیکونکې فخر الدین مبارکشاه په پنځمه هجري پیړۍ کې په یوه قصیده کې دا موضوع بیان کړې ده.

**د فخر الدین مبارکشاه قصیده:**

**به اسلام در هیچ منبر نماند**
**که بر وی خطیبې همې خطبه خواند**
**که بر آل یاسین بلفظ فصیح**
**نکردند لعنت بوجه صریح**
**دیار بلندش از ان شد مصؤن**
**که از دست آن ناکسان بُد بیرون**
**از ین جنس هر گز درو کس نگفت**
**نه در آشکارا نه اندر نهفت**
**نه رفت اندر ولعنت خاندان**
**برین بر همه عالمش فخر دان**
**همین پادشاهان بادین و داد**
**بدین فخر دارند بر هر نژاد**

(روضة الصفا ۴ ټوک ۷۳۷ مخ).

نوموړی مبارکشاه د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري په عصر کې ژوند کاوه او د غوري پاچاهانو تاریخ یې په نظم لیکلی دی او دا خبره یې د

غـوري شـاهانو د ښـه عقيـدت او قـوي اسـلاميت لـه نخښـو څخـه ګڼلـې ده، هغـوی د خپـل پيغمبـر محمـد مصـطفی (ص) لـه څوځـات سـره پــه داسـې انـدازه اخـلاص درلـود، د بنـو اميــه د زوروړې امپراتــورۍ سره يې مقابلې وکړې او د هغوی حکم يې ونه مانه.

## د عمر بن عبدالعزيز په عصر کې د ال بيت په نسبت دغه بد الفاظ ترک شول

هغـه وخـت چـې عمـر بـن عبـدالعزيز امـوې د مسلمانانو خليفه شو او دی يـو خـورا عـادل شـخص ؤ، چې په اسلام کې د ده د عدالت له امله د راشـدينو خلفـاو پـنځم خليفه ګڼل شـوی دی، نومـوړی خليفـه، آل محمـد (ص) ته د بنو اميه لـه خـوا وضـع شـوی شـنيعه او نـاوړه الفاظ لـه خطبې څخه وغورزول او د هغو الفاظو په عوض يې د قـران کريم داآيت په خطبه کې وضع کړ:

(ان الله يأمر بالعدل والاحسان وايتاءِ ذی القـربی ويـنهی عن الفحشاء والمنکر والبغی يعظکـم لعلکـم تـذکرون) (١٤ پاره، سورة نحل)

د عمـر بـن عبـدالعزيز د همدغـه کـار لـه املـه دنـړۍ ټـول مسـلمانان خوشـحاله شـول او د ده مدحـه او توصيف بـه ئې کـاوه. او پـه دغـه اثـر د ده پـه شـان کـې يو شخص د ستاينې قصيده ويلې ده:

وليــت فـلم تشــتم عليا ولم تخـف
بـريـا ولـم تـتـبع مــقالــة مجــرم

تکلــمت بالحــق المبـين وانـــما
تبـيـن آيـات الهــدی بـالتـکــلم

وصــدقت معـروف الذی قلت بالذی
فعــلت فاضحی راضـيا کل مسلم

الا انــما يکـفی الفـتی بعد زيـــغه
مـن الاود البـادی ثقـاف المـــقوم

کــوم وخــت چـې عمــر بــن عبــدالعزيز دا شــعر واوريد، نو يې وويل: افلحنا اذاً!!!

په دې وخت کې شيعه ګانو به راشيدين خليفـه ګـانو ته د جمعې په خطبـه کـې ښکنځل کـول، نـو د اهـل سنت والجماعة عالمانو پريکړه وکـړه، چـې د صحابه کرامـو او د پيغمبر ص د اولادې په نسبت نـاوړه الفاظ پـه خطبـه کـې استعمال نشـي، د هغـې پـه ځـای يـې د آل بيـت، راشـدين خليفـه ګـانو او صـحابه کرامـو پـه اړه د حـديث الفـاظ او د هغوی مدحه ضروري وګڼلـه قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَرْحَمُ أُمَّتِي بِأُمَّتِي أَبُو بَكْرٍ، وَأَشَدُّهُمْ فِي دِينِ اللَّهِ عُمَرُ، وَأَصْدَقُهُمْ حَيَاءً عُثْمَانُ، وَأَقْضَاهُمْ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ وايضاً قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيهِ وسَلَّمَ: الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ... چې دا لړۍ تر اوسه پورې را روانه ده، خو اوس مهال ځينې عالمان هڅه کوي، چې د صحابه کرامـو او آل بيت په اړه دا وضع شوي خطبـه، چـې ديـارلس سـوه کالـه قـدامت لـري، لـه منځـه يوسـي او پـه ځـای يـې نـور الفـاظ ووايې، نه پوهيږم چې دوی په دې کنبې څـه ګټـه ليـدلې؟ او په ويلو کې يې څه نقصان ليدلی؟ يـا پـه بـل تعبيـر دوی دپيغمبر عليه السلام د صحابه کرامو او د اولادې د نومونو له ذکر کولو سره ولې دښمني لري؟؟؟

(تاريخ ابن اثير، ٥ ټوک، ٢٠ مخ، البدايه والنهايه، الکامل في التـاريخ، تـاريخ الاسـلام لامـام ذهـبي، الفخـري في اداب السلطاني، تاريخ ابن الوردي، تاريخ اليعقوبي).



# جرم در افغانستان

# محاکمه در امریکا!

تصمیم آمریکا مبنی بر انتقال یک زندانی روس از افغانستان به آمریکا برای محاکمه، نشان می‌دهد واشنگتن با وجود ادعای داشتن روابط استراتژیک با افغانستان برای محاکم و مراجع قضایی این کشور احترام قایل نیست و اعتماد ندارد.

مقامات آمریکایی یک شهروند روس که در افغانستان دستگیر وزندانی شده را برای محاکمه به آمریکا منتقل کردند؛ اقدامی که از نظر برخی کارشناسان، نشان دهنده بی‌اعتمادی و بی‌احترامی آمریکا به سیستم قضایی اداره کابل است.

زندانی روسی که به آمریکا منتقل شد «اریک حمیدلالن» نام دارد؛ فردی که سرباز پیشین ارتش سرخ بوده و در زمان اشغال افغانستان توسط شوروی به این کشور آمده اما در این سرزمین مانده و دیگر به شوروی بازنگشته است.

این سرباز سابق ارتش شوروی در سال ۲۰۰۹م. زمانی که با شماری از شبه‌نظامیان طالبان به یک مرکز مشترک نیروهای افغانستان و نظامیان آمریکایی در ولایت شرقی خوست حمله کرده بود، دستگیر شد.

شورای امنیت آمریکا اعلام کرده، این شهروند روسیه که در زندان بگرام در شمال کابل زندانی بوده برای محاکمه به آمریکا منتقل شد.

عبدالشکور دادرس عضو کمیته بررسی پرونده‌های زندانیان بگرام در همین زمینه گفت: آمریکا حق ندارد افرادی را که در افغانستان مرتکب جرم شده‌اند، برای محاکمه به بیرون از کشور منتقل کند.

در آن صورت آمریکا در زمینه اتخاذ تصمیم در مورد چنین افرادی، صلاح طرف افغان را در نظر گرفته و دستکم ملاحظات و مشاوره‌های طرف افغانستان را به هدف اتخاذ تصمیم مناسب در نظر گرفته و هرگز به صورت یک‌جانبه و خودمحور، انتقال چنین زندانیانی را در دستور کار قرار نمی‌داد.

از سوی دیگر عدم ارایه دوسیه زندانیانی از این دست به محاکم افغانی، به طور تلویحی تقویت‌کننده تصور بی‌کفایتی و یا وجود فساد اداری در این دادگاه‌ها است و بر نگاه مردم افغانستان به این قبیل محاکم تاثیر منفی گذاشته و به میزان زیادی اعتماد و اتکای آنان به این دادگاه‌ها را کاهش می‌دهد.

مخالفان این تصمیم آمریکا در افغانستان استدلال می‌کنند این سرباز روسی در حال حمله به پایگاه مشترک نیروهای افغانستان و نظامیان آمریکایی بوده و بر اثر تلاش مشترک نیروهای افغانستان و نظامیان آمریکایی دستگیر شده و تصمیم در مورد این فرد به عنوان دستاورد امنیتیِ مشترک، حق مشترک و مساوی ۲ کشور (افغانستان و آمریکا) است و از این جهت نیز باید به افغانستان به چشم یک طرف تصمیم‌گیرنده، نگاه می‌شد. (شبکه ـ اطلاع ......).

# د ایکسپریس ورځپاڼې دارتداد مجرمانه جرآت!

(شاهـــد)

څنګه چې مو لا له مخکې نه په مطبوعاتي لیکنو کې د(اشـرف غنـي او عبـدالله )د واکمنیدو سـره جوخـت داسـلامي احکـامو او افغـاني اقـدارو څخـه ددوئ دانحراف وړاندوینه کړې وه ،کټ مټ هماغسي دپلې کیدو په لور روانه ده، او دکابل کې ددوئ د نصبولو او تحمیلولـو وروسـته دادی، ډیـر نـږدې دډیـرو عقیـدوي ،روایتي او افغاني انحرافاتو مشاهده کوو !

له بده شامته چې د(اشرف غني )دټاکنې په دویمه ورځ بـي لـه مشـورې ،ولسـي ټولپوښـتنې ،او دافغـان مسلمان قام له تاریخي شالید څخه په درس اخستلو یې دافغاني مرؤت او ملي روایاتو خلاف، یو داسې بزدلانه او لـه ذلـت نـه ډک ګـام واخیسـت ( دامریکـا او دکابـل دغلامـي اداري تـړون)چې دتـل لپـاره بـه مـو (خدای ج مکـړه) آزادي غوښـتونکی او اسـتعمار شـکن ولـس ،دیرغلګرو داسارت پـه لویـدیځو ځنځیرونـو کې زولانـه وي ،او له کبله به یې دهیواد فضاء داشغالګرو الوتکیو دالوتنو نه زغمیدونکی قلمرو وي ؛دولس په سترګو کې لا هغـه پرونـۍ ترمې اوښـکې نـه وې وچې شـوي ، چې دکابـل دتوحیـد لـه زاړه بـام څخـه ، پـه ډیـر جسـارت او مفتضـحانه جرأت دشـرک ، کفـراو ارتـداد مطبوعـاتي لمبې پورته شوي او د(حضرت عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنــه ) پــه لاس دفتحــه شــوي کابــل ،داحمد شــاه بابادمعاصر افغانستان زړګوټی ،دملا مشک عالم ،څرخ ملاصیب ،ایوب خان ،اکبرخان دهیلو کابل ،دشهیدې (ناهیـدې)پـه وینـو سـورکابل او بـالاخره دلـس ګونـو زرو شهیدانو دوینو په نذرانو دګټلې کابل، په ورشوګانو کې یـو واربیـا ، دتـور الحـاد ،لویـدیځ پـال ارتـداد او شـرک چیغې دځو نااهلو واکمنودواکمنۍ له پوړه پورتـه شـوي، او افغـان مسـلمان قـام یـې دویر،کوکـو ، اوښـکو بلکـې دغضب او قهر پـه تغر کښـیناوه، حالات یې ورتـه داسـې عیـار کـړل، چـې کـه څـوک یـې پـه وړانـدې دیـوه مشـروع بغاوت غږهم جګوي او دا دیوه اسلامي هیـواد پـر خلاف دمنحرفـو نصـاراوو او یهـودو یـوطرح شـوی پـلا ن او دسیسـه بـولي، نـو لا لـه مخکـې یـې د(بي **۵۲**ډولـه او بي پیلوټـه الوتکولـه مالکانو سـره دغلامـۍ معاهـده کـړې ،اوپدې یې سره( هوکړه )کړي، چې هرهغه څوک چې ددې بدنام تړون دطرفینو نـه غیـروي ، نـو پـه اصطلاح ترهګر دي او..او....

هـــو!!

دا دمرتـد (عبـدالرحمن )غونـدې، یـو بـل مرتـد دی ،چې د کابل څخه په انګریزي ژبـه خپریـدونکې Express

ورځپاڼې په ۴۵۱ ګڼه کې یې ددې عنوان لاندې چې ( The Islam of Taliban and ISIS )ددې ورځپاڼې یوه لیکوال ( A.J.Ahwar ) اهوار، په ډیره بې باکانه لهجه دمخلوقاتو خالق جل جلاله په وړاندې ګستاخانه لهجه کارولې، دقرآن کریم او حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم په مبارک شخصیت پسې یې بې حقیقته او نا درستې خبرې لیکلي، چې مونږ به یې ځینې هغه برخې چې پښتو ته ترجمه شوي او رسنیو خپرې کړي ، دنصاراووا و یهودو په قساوت او عداوت باندې د مسلمانانو دپوهولو او ددوئ داحساساتو دلا راپارولو لپاره دلته ولیکو ،مناسب داسې وه، چې داسې خرافاتي خبرې هیڅ نورې خپرې نشي، خو ځینې داسې خلک شته، چې ددې مرتد لیکوال کفریاتو باندې په تفصیل سره ندي خبر ،نو بنه داده، چې ځینې برخې ورته ددې لیکنې دغندلو په خاطر رانقل کړو ،ځینې برخې یې داسې دي، چې زما قلم یې حتی له رانقلولو هم عاجز دی او مناسب هم راته نه ښکاري ،نو ځکه مې دهغو نه صرف نظر وکړ ،چې هغه څه داسې دي !

**مرتد (اهوار) لیکي:**

د طالبانو او) ISIS داعش) په بیرغونو لیکل شوي، چې الله ج یو دی، او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم) یوازینی پیغمبر دی، یو خدای او یو پیغمبر، دا ډیره دلچسپه خبره ده، چې که څوک اسلام راوړي نو دا به مني، چې یو خدای شتون لري او نور خدایان منتفي دي، هر مسلمان عقیده لري چه د مسیح، پلار Father او میری د خدای ج په صورت کې د منلو وړ نه دي، یوازې د مسلمانانو خدای ج موجود دی. نو واضح شوه ،چې بیا خو تفاهم ته اړتیا نشته، د نورو عقایدو نه منل او انکار د بې امنۍ او په نړۍ کې د تبعیض سبب ګرځي، چې دا یو غیر انساني طرز تفکر دی، مسلمانان وایي چې هر چاته هر چیرې د اسلام لار پرانستې ده ،خو کله چې مسلمان بل دین غوره کړي، نو د مسلمانانو له نظره دا کارد منلو نه دی.

مرتد لیکوال لیکي: چې محمد (صلی الله علیه وسلم) ویلي:چې تاسو مسلمانان آزاد یاست !چې زنا کاران، قاتلان او مرتدین ووژنئ!

اهوار لیکي: دا ډول کړه وړه چې طالبان او داعش (ISIS)یې کوي دا ددوئ اسلامي عقیده او د دوئ د خدای ج او پیغمبر ص دستورات دي.................

دکابل دایکسپریس ورځپاڼې ددې ارتدادي لیکنې سره، دافغانستان داوسنیو واکمنو ځیره نوره هم پسې رسوا شوه ،خلک پوه شول، چې اصلاً اشرف غني دهمداسې اعمالو دانجامولو لپاره توظیف شوی او دده په راتللو دعیسوي نړۍ ډیر ټینګار اولوړ لوړ لګښتونه دهمداسې منحرفو کارونودترسره کولو لپاره وو ،که څه هم دکابل غلامو واکمنو څه غروپش شروع کړی ،خو دا هیڅکله کافي ندی،ځکه ولس ژرتر ژره، ددې لیکوال ،او دورځپاڼې داداري پرسونل مجازات غواړي اودا دامریکایانو او اروپایانو په شتون کې ناشونی دی ، دمسلمان ولس داحساساتو خلاف اشرف غنی یوازې دتحقیقاتو امر کړی ،چې دکابل دامنیتي ادارو پروینا تر دې دمه لا څوک پدې جرم ندي نیول شوي ،پداسې حال کې چې دایکسپریس ورځپاڼې چلوونکي او همدا مجرم لیکوال ، اوس هم په کابل کې اوسي ،او دا ورځپاڼه هم له کابله خپریږي، خو بیا هم به دې کې تحقیقات کیږي او بیا به نو سزا ټاکل کیږي ،چې دخلکو په باور به غني احمد زی دخپل سلف حامد کرزي غوندې له لویې څارنوالۍ څخه دمرتد عبدالرحمن پنجشیري غوندې دکابل دایکسپریس (اهوار)مرتد هم ناڅاپه په اعزازي توګه کوم بل غربي هیواد ته له محاکمې پرته ولیږدوي ،اودخلکو په هیلو به خاورې واړوي ،چې څو خلک خبریږي هغه به

کابل کې نه وي ،دا به هم هغه وخت کیږي ،چې پیدا او ونیول شي، اوس چې دولس له دومره شدید وغبرګونو سربیره بیا هم داشرف غني ګامونه پخ او قناعت بخښه ندي، نو دکرزي غوندې ګامونه اخستل هم ورته ناشونې دي.

داپیښې یوه له بلې سره په یوه عجیبه ډول پیوند مومي، همدې ورځو کې دکابل دسترې محکمې دقاضي القضات عبدالسلام استعفاء،دلویې ځارنوالۍ دمشر عزل ،امریکا ته دسپینې ماڼۍ دتورپوستې مشر اوباما په بلنه راتلونکې میاشت کې داشرف غني او عبدالله دتللوهوډ او ورسره تجدیدعهد ،او نورې تازه پیښې هغه ځارنې دي ،چې دکابل دایکسپریس ورځپاڼې غوندې دکفریاتو په تشویق او هڅونه کې نور تشدید هم راولي او ددې هیله ډیره کمه ده، چې دا غلام چارواکي دې، له اسلامي شعایرو ننګه وکړي ،بلکې هره ورځ دتازه داسې نامتصورو او اسلام ضد حوادثو انتظار پیاوړی کوي !

دکتونکیو له نظره داسې بې شرمانه اعمال او داسلامي معتقداتو سپکاوی ،ددې نه په غیر، چې مسلمانانو په زړونو کې دخپل رب ج او دده د دین مینه غښتلې کړي او دې مقدسه لاره کې یې دوینو نذرانو ته ترغیب کړي، بله هیڅ کومه ګټه به کفاروته ونه رسوي ،داکه هغوئ دافغانانو دعقیدې ارزیابي کوي او که خپله سینه په داسې فجایعو یخوي، ټول تاوان به یې پایله کې همدوئ ته رسیږي او دیوه دالهي دین په حیث مو باور دی، چې هیڅوک به ورته تاوان ونه رسوي !

**انشاء الله تعالی**

## له مرګه وروسته ژوند

## ساینس هم ثابت کړ

په انګلستان کې د ساینسپوهانو یوه ډله د ځلورو کالو راپدېخوا پدې اړه څېړنې کوي ، چې آیا تر مرګ وروسته رشتیا هم ژوند شته؟ د دوی ځواب مثبت دی. دوی هغه کسان تر ازموینې لاندې نیسي چې د زړه حمله ور باندې راشي، کله چې د انسان زړه ودرېږي په ۲۰ یا ۳۰ ثانیو کې دماغ کار پرېږدي.

په طبي لحاظ نور دا کس مړ دی او داسې هم ډېر شوي دي، چې تر دغسې حالت وروسته ډېری کسان مړه شوي دي، خو دغو ډاکترانو او ساینسپوهانو به کله چې په ناروغ د زړه حمله راغله تر څېړنو لاندې نیول او دې څېړنې ته به یې ادامه ورکوله.

دوی غوښتل پدې ډول ثابته کړي چې تر مرګ وروسته هم ژوند امکان لري او کنه، خو دوی د څېړنو په ډېره برخه کې ولیدل چې یو شمېر کسان بېرته راژوندي کېږي او د زړه ضربان یې فعالېږي او انسان ساه اخلي. کټ مټ هغسې چې تاسو به په یو شمېر سریالونو او فلمونو کې دغسې مصنوعي صحنې لیدلې هم وي.

د پښتو سایسنې معلوماتو د فېسبوکپاڼې د معلوماتو په اساس له دغو ناروغانو څخه تر دوو یا درېو دقیقو وروسته پوښتنې وشوې، نو ویې ومونده چې طبي اعلان شوي مړه کسان ژوندي دي. دوی ترې وپوښتل چې پدې وخت کې یې څه ډول احساس کاوه؟ څه یې لیدل؟

خو ځوابونه مختلف ول. ځوابونه به یو څه او ځینو به بل څه ویل. د یو شمېر کسانو ځوابونه داسې ول: ما خپله خپل ژوند لیده، چې د خونې له کونجه بېرته را روانېږم.

- زه له خپل بدنه جلا شوم، خو بېرته جوړ شوم.
- زه داسې وم لکه په اوبو کې چې غرق شم.
- ما اوازونه اورېدل، خو څه مې ویلی نشوای.

له دې څخه ډاکتران نتیجې ته ورسېدل چې تر مرګ وروسته ژوند شته دی. (محور)

# یولې جهادي مصالح

راټولونه : خلیل - عزیز

لکه لمرروښانه حقیقت دی ، چې امریکا، ناټو اوګوډاګیان یې له خپل ټول قوت ، وحشت اوډول ډول جنګي ستراتیژیانوسره سره ، په دې ونه توانیدل چې دافغان مجاهد ولس په مټ دروان جهادبرم اوبرحقیت ته نقصان ورسوي ، مجاهدین په عامه اذهانوکې په یو اوبل نامه داغدارکړي اوله پاکو موخوسره یې ناپاک مغرض اهداف وتړي اویادعام ولس اومجاهدینو ترمنځ لوی واټن اوخلیج رامنځته کړي ، په دې معناچې مجاهداوعام ولس سره په ټکراونفرت کې وغورځوي اویودبل په مقابل کې وکاروي .

ماچې څومره فکرکړی چې ولې امریکا، ناټو اودکابل اجیررژیم په دې برلاسي نشوترڅوولس اومجاهدسره جلااویودبل مخالف وګرزوي ، زماپه اندمهم وجوهات یې دادي ، چې له یوې خوا افغانان سخت اصیل اوباغروره ملت دی ، دین اوغیرت یې په رګونوکې خاص ځای لري ، امریکااوکفري ایتلاف چې دتیرو۱۴ کلونوپه اوږدوکې څه ترسره کړي افغانان یې سل په سله دخپل دین اوغیرت خلاف بولي اوداخبره یې په نفس اوضمیرنه اواریږي چې خارجي عسکردې دهغوی په حریم اوځمکه ناولي قدمونه کیږدي ، له بل اړخه مجاهدین اواسلامي امارت هم ددښمن حربواودسیسیوته سخت ځیراومتوجه دی ، دامکان ترحده زیار باسي چې دولس اومجاهدینوترمنځ ، استکباردتفرقي اودرز اچولوځای پیدانکړي.

همدغه علت دی چې داسلامي امارت په جهادي لوایحواوهم دمشرتابه په مکررو‌پیغامونواوتوصیوکې داټکي اومادي په صراحت راغلي اوراځي چې مجاهدین بایدله ولس سره ښه چلندوکړي ، دهغوی په وړاندې له زور اوتهدیدڅخه کاروانخلي ، بلکې نیږدې رابطه اوتفاهم دې ورسره لري .

په افغانستان کې دامریکادجنګ یوپخوانی جنرال اوقومندان ( جوزف دنفورد) هم چې کله بدل اوپرځای یې بل جنرال راغی په یوې مرکې کې یې دافغانستان جګړه داسې تشریح اونتیجه ګیري یې اخیستي ، چې دافغان جنګ ګټونکي هغه څوک دي چې افغان ولس خپل کړي ، هغه وایي کچیري مونږ دافغان ولس په مزاج برابرچلندکړی وای اودهغوی زړونه مودځان کړي وای لکه چې داسې موونکړل ،نو لس کاله دمخه به مونږدغه جګړه ګټلي وای ، جنرال وایي طالبان هم که دولس په خوښه اورضایت وچلیږي اوزړونه یې وګټي شک نشته چې داجګړه هغوی ګټلي .

**مجاهدو ورونو!**

راځئ چې یوڅوهغه جهادي مصالح اونکتي چې په لحاظ اومراعتولوسره یې جهاداومجاهدینوته لویه نفع اوهراړخیزه

ګټه رسیږي وخیږواوکه ممکنه اومناسبه وه ، بیاعمل پرې وکړو .

**ړومبی نکته** : ( دهرې جهادي مرحلې درک اوفهم توپیرلري)

ترټولومهم اصل دادی چې مجاهدین بایددهرې جهادي مرحلې ایجابات اوتعاملات په نظرکې ولري ، دمثال په توګه دامریکا، ناټوپه وړاندې دروان جهاد مرحله دروسانوپه وړاندې دجهادله مرحلې په ځینوموواردوکې دشرایطواوظروفوله مخې توپیرلري ، داسې چې څه مو په هغه تیرجهادکې لیدلي اویاکړي وي هغه کټ مټ په اوسني جهادکې عملي اوپلي کړو، دروسانودجهادپرمهال ټوله دنیااوهیوادونو دمجاهدینوترڅنګ ولاړ وو، خو دامریکااوناټوپه وړاندې دجهادپه روانه مرحله کې دنړې یوهیوادهم دامریکاله ویرې ، چمتوندی چې دمجاهدینوحمایه اویامرسته ورسره وکړي ، همداراز ولسونه هم داستعمارداستبدادله وجې په صراحت له مجاهدینوسره لکه دروسانودیرغل په مهال ، اسانه اوډیره ممکنه نده چې میدان ته راووځي ، خوله شک پرته چې زړونه یې له جهاداومجاهدینوسره دي اودادومره لوی جهادچې روان دی ، څوک څه فکرکوي چې دولسونه مالي مرسته نه واي ، داجهادي لګښتونه اودمجاهدینودخوراک اوڅښاک انتظام به چاکاوه ، داخوپرځای پریږده چې هغوئ مجاهدله ځان سره پټوي اوددښمن له چاپواوداموروپې دسرپه بیه ژغوري ، مطلب داچې مجاهدین بایددیته زور ورنکړي چې دافلانی ولس او کس ولې عملي میدان ته نه راوځي اوپه رڼاورځ مونږ ته هرډول امکانات نه برابروي ، که چیرې مجاهدین په دې برخه کې له زور اوتشددڅخه کارواخلي ، ممکن دګټې پرځای تاوان وکړواوالله دې نکړي دولسونو روانې خواخوږی ته نقصان ورسوو.

**دویمه نکته** : ( په هغوسیموکې چې کامله سلطه نه وي دفرامینوپه تطبیق کې عجله نده پکار)

مجاهدین بایدپه هغوسیموکې چې دواک اوقدرت ساحه یې محدوده اویاداسې وي چې دشپې له پلوه هلته مجاهدین لاس بري وي اودورځې بیاهلته دښمن مسلط وي ، دامارتي فرامینوپه تطبیق اوپلي کولوکې له تلوارڅخه کاروانه خیستل شي ، ځکه په دغسې حالاتوکې بیادمجاهدینوپه مقابل کې دښمن ستونزې جوړوي اوعامه ذهنیت دې خبرې ته عیاروي چې وګورئ طالبان اومجاهدین سره لدې چې په سیمه کې لابشپړ واک اوسلطه نلري سخت فرامین اوحکمونه جاري کوي ، که کامل واک یې راشي بیابه دستاسو په مقابل کې له څه ډول اجرااتوڅخه استفاده کوي !!.

**دریمه نکته**: په زوره له خلکودمالي مرستې اومراعاتوغوښتل :

کچیرې مجاهدین په خلکوپه زور میلمستیاوي جوړې کړي اویاپه جبرمالي مرسته ترینه وغواړي ، ښکاره ده چې داکار دګټې پرځای نه جبرانیدونکی زیان لري ، دافغانستان دخلکوخصلت دادی چې هغوی میلمه پال اوله دیني قشراوطبقې سره دزړه له تله مینه اومحبت لري ، خوچې خپلې خوښې اورضا ته پریښودل شي ، که برعکس هغوی په وچ زور دغه کارته وتړل شي ، بیاداکارنکوي اوکه یې وکړي هم دابه یې اول اوورستی مرسته اواخلاص وي ، نو مجاهدین دې په لوی لاس مخلص مسلمانان له ځانه په دغو کارونو نه متنفرکوي، په دې برخه کې داسلامي امارت جهادي لایحه هم خورادصراحت ټکي لري ، چې بائیدکلک عمل ورباندي وشي

اویامجاهدین په دښمن دبرید لپاره له داسې ولسي- ځایونو پیرونه اوبریدونه کوي ، چې بیاورسته

دښمن دهمدغې سيمي خلک هدف گرځوي اوانتقام ترينه اخلي ، دغه کار دولس نفرت اوخوابدي رامنځته کوي ، نوښه داده چې دغسي۔ عمليات بلکل مجاهدين ونکړي .

**ځلورمه نکته** :دخلکو اصلاح اوجذب بايد دهغوی په مروجه مذهبي منهج برابرترسره شي :

ددې لپاره چې دخلکواذهانوته دمجاهدينودجلب اوجذب اواصلاح هڅې مثمري تمامي اونابلده ورته ښکاره نشي۔ ، غوره داده چې دهغه ولس په ديني اودوديزمنهج برابري غوښتني ورنه وشي اودهغوپه رڼاکې ورسره چلندوکړي ، مجاهدين که په کومه سيمه کې اوسي ، کوشش دې وکړي ترڅوخپل شکل اولباس دعاموخلکوپه څير برابرکړي ، همدارنگه که يومنکرمجاهدينووليددهغه ددفع لپاره دسيمي دبانفوذه علمای کراماوقومي مشرانوسره مشوره وکړي اودهغوی په خوښه دي اقدام ترسره کړي ، ترڅو خلک دمجاهدينوپه اقدام سره په حيرت کې واقع نشي۔ اوتبليغاتوته زمينه برابره نشي .

لکه چې حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ، حضرت عايشي۔ رضی الله تعالی عنهاته فرمايي چې لَولا أَنَّ قَومَكَ حَدِيثُوا عَهدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ لَهَدَمتُ الكَعبَةَ وَبَنَيتُهَا عَلَى قَوَاعِدِ إِبرَاهِيم

يعني ای عايشې کچيرې ستاقوم تازه مسلمان شوی نه وای ، نومابه اوسنی کعبه نړولی وای اودابراهيم په اساس اوبنيادونوبه مې له سره جوړه کړي وای، نوچې داسلام پيغمبر ص ، دکعبې جوړول چې يو ارمان يې وو ، دخلکودبدوتبليغاتودسرايت له وجې پريږدي اومصلحت همدابولي ، مجاهدين چې دهمدغه پيغمبرصلی الله عليه وسلم دپاک اومطهر شريعت پاسداران اوعسکر دي ، هغو ئ خوبائيدزيات دغه ډول مصالح په نظرکې ولري .

**پنځمه نکته**: له خلکوسره ښه مروت اوله سهولت کاراخيستل :

دلته مرادله سختي نه کولوڅخه دادی چې مجاهدين بايدپه خلکوهغه څه تحميل نکړي چې په وس اوتوان کې يې نه وي، يعني په زوراودوسلې په ميل دخپلو تفکراتو او غوښتنو منلو ته هغوی مجبورنکړای شي،اوهغه څوک چې زمونږله فرمايشاتواوخواهشاتوسرغړوي اوورسره جوړنه وي هغوته دمخالف اودښمن په نظرونه کتل شي اودسزامستحق يې ونه گرځوو، لکه چې حضرت ابن عباس رض وايي چې حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ، دحج په مهال دعقبې جمري دويشتلو لپاره وويل چې کاڼي راټول کړي اورايې وړی ،ماورته ۷ کاڼي راوړل اوورمې کړل ، حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم کاڼي په مبارکولاسوکې واړول راوايي ږول اوبيايي وفرمايل چې : ځان وساتی له سختي کولواوافراط څخه په دين کې ، ځنگه چې پخواني امتونه له تاسې وړاندې په دين کې له سختي اوافراط په سبب نابوداوهلاک شول

همدارنگه حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم دهغه اعرابی اونالوستي کس په حق کې چې په مسجدنبوي کې يې په وږوبولوکيناست اوصحابه کراموغوښتل چې اعرابي تهديدکړي ، خورسول الله صلی الله عليه وسلم صحابه وو ته وويل چې (" دعوه ، وأهريقوا على بوله ذنوبا من ماء ـ أو سجلا من ماء ـ فإنما بعثتم ميسرين ، ولم تبعثوا معسرين " [بخاری كتاب الوضو]

پرې يې ږدی ،بيايې په بولويوه ډولچه اوبه تويی کړي ، مونږپه اسانی کولومبعوث شوی نه په سختی سره)

نومجاهــدين ورونــه بايدپــه نرمــی اوســهولت سره خلک دځــان ملګـري کـړو اوددې کلک عـزم وکـړو چې عـام ولـس دځــان همکاراومرســتندوی وګرځــوو اوپــه لـوی لاس یـې مخالفـت تــه مجبـورنکړو، حضـرت رسـول اکـرم صـلی الله علیـه وسـلم چې پـه جګـړې اوحربي حـالاتوکي لـه کـوم مصــلحت اوحکمــت څخــه کاراخیســتی ، بائیدپــه هماغــه لاراومســــیرباندي روان ووســــو، لــــه انتقـــام جــویی اودخپلوخواهشاتوپه رڼاکې له فیصلي کولونه ډډه وکړو .

څـومره چې پـه تیـرو۱۳ کلونـوکې پـه ګـران هیـوادکې پــه تجربوثابتــه شــوي هغــه داده چـــې خلکوتـــه پـــه ســزاورکولوکې بایدلــه زیــات احتیــاط څخــه کارواخیســتل ، پـه وچ اومحـض ګـمان څـوک دمـرګ کـومي تـه ونـه لیـږدول شي اویادهغوبارسـوخه خلکـوچې ترشـایې قومونــه ولاړوي اوهغـه یـې مشـران وي ،کـه چیـرې یـې کومـه خـلاف ورزي هـــم ثابتـــه اوښــکاره شي ، مجاهـــدين یـــې بایدپـــه ســزاورکولوکې داځـای ضرورمعلـوم کـړي چې کـه هغـه قـومي مشرـته سـزا ورکـړل شي ورسـته خوبـه کـوم داسـې ردعمـل اوشـورش تــه زمینــه نــه برابریــږي چې هغــه مجاهدینوتــه لوی درد سرجوړشي اوبیایی حل لویي قرباني وغواړي !

حضـرت عمرفـاروق رضـی الله عنـه ، لـه رسـول اکـرم صـلی الله علیـه وسـلم څخـه وغوښـتل چې دمشـهورمنافق (عبـدالله بـن ابـی ابـن سـلول) پـه اړه اجـازه ورتـه وکـړي چې سریـې لـه تنـي جـداکړي ، خوحضـرت رسـول اکـرم صـلی الله علیـه وسـلم ، ورتـه پـه ځـواب کـې وفرمایـل چې : دَعْـهُ لَا يَتَحَـدَّثُ النَّـاسُ أَنَّ مُحَمَّـدًا يَقْتُـلُ أَصْـحَابَهُ [متفـق علیـه] یعنـي پریـږده داسـې نـه چې بیاخلـک ووایـی چې حضـرت محمدخپل ملګري هم نه پریږدي اووژني یې :

همدارنګــه حضــرت رســول اکــرم صــلی الله علیــه وســلم، الله تعــالی تــه ســوال وکــړ چــې یــاالله تــه یولــه عمرینــوچې یــو( عمرفــاروق اوبــل ابوجهــل ) وو اودواړه دقــوم سرداران وو ، چــې کــوم یــویی تاتــه غــوره وي پــه اســلام یــې مشرــف وګرځــوي ، ترڅوداســلام دیــن تــه ترقــي اوقــوت حاصــل شي ،هماغــه وو چــې الله تعــالی دحضــرت عمرفــاروق رضــی الله تعــالی عنــه زړه تــه داســلام اوهــدایت رڼــایي دننــه کــړه اوپــه اســلام راوړلــو سره داســلام بــرم اوعظمت څوچنده لوړوګرځید

**خلاصــــــه :**

دجهاددکامیابي اودمثمرو نتایجو دلاسته راړولو لپاره چې هغه دیوه اسلامي دولت اونظام حاکمیت دی خاص رمزدولس اومجاهـدینو تـرمنځ پـه وحـدت ، متقـابلي همکـاری او نیـږدې تفـاهم کـې نغښـتی دی ، کـه مـونږ هرڅـومره سـیمي فتحـه کـړواودولس راسره مرسـته او ملګرتیانـه وي دغـه فتوحـات او تسلط به زمونږ موقتي اولنډمهالی وي اوبیاپه اوسـني حساس وخـت کـې چـې لـوی استعماردافغانسـتان دهضـمولو پـه نیت دنامعلوم وخت لپاره په افغانستان کې دستروفوځي اډو لپاره له خپلو غلامانوسره امنیتي تړون هـم لاس لیـک کـړ، زماپـه فکـر داستعمار لویه موخه همداده چې نور ځان له مجاهدینوسره پـه جګړوکې مخامخ ښکیل نـه کـړي ، بلکـې تکنـالوژی او داخـلي ګوډاګیان بـه دځـان سـپرګرځوي اودهغـه ترڅنـګ بـه یـې لـوی اوخاص کوشش داوي ، چې دمجاهدینواوعام ولس ترمنځ الله مکړه خوابدي راوټوکوي اویوله بل سره یې واچوي .

نومجاهــدين ورونــه دي داســتبکاردغه لــوی دام تــه ســخت متوجــه وي ، لــدې زیــات دې پــه ځــان ســختي راولي ، خودخپـل اتـل ولـس اوپرګنوپـه حـق کـې دې ، لـه پـوره حوصـلي ، بردبـاری اوچشـم پوشـی څخـه کـارواخلي ، همکـار ملت دي نـور ونـازوي ،بلکـې پـه مخـالف صف اولیکـه کـې دي ولاړ اوتیـروتلي خلـک هـم دځـان لورتـه رامـات او جذب کړي

---

# د باګرام زندان څخه، داسلامي امارت راخلاص شوي



## پیاوړي قومندان ، سره دځرک مجلې ځانګړې مرکه:

# زندان که په ظاهري خېره د ژوند یو ګور ،

**د ازمېښتوکور ، د دښمن دخندا اوددوستانو دتجربې ځای دي ، لیکن زندان دعبرتونو درسګاه ، دزغم او ترخو غړه پونو دتیرولو یو پوهنځای هم دی. (مولوي عبدالله حسیني)**

**پوښتنه:** جناب مولوي صاحب ! ستاسوعلمي اوجهادي حیثیت له چاپټ ندی اودروان جهاد هرلاروی اوخواخوږی موله نوم سره اشنا دی ، په هغه سربیره ، که دځرک مجلې درنو لوستوالو ته ، خپل لنډ تعارف وکړی اوهم دزوکړې او زدکړې په اړه مناسب معلومات اوتوضیحات ولوروي ، لورینه به موي.

**ځواب :**

نوم مې عبدالله او تخلص مې حسیني او په اوسني مهال کې مې په مختار شهرت پیداکړ ، د پلار نوم مې حاجی محمدحسین دلوګر ولایت د محمداغې دولسوالی دبرګ د کلي اوسیدونکی په قوم احمدزی عیسی خیل یم ، دخپل مشفق او دین دوسته پلار په پالنه مې په شپږ کلنی کې د باغبانانو د کمپ دمهاجرینو دکمشنرۍ مربوط په ابتدائیه مدرسه کې د (ابتدایي لیک لوست او ناظره قرآن کریم) له زده کړې وروسته دباغبانانو د دارالنجاة والثقافة الشرعیه للاحناف په مدرسه کې ابتدائي دیني کتابونه وویل ، بیا مې د چراټ دجهاد کلي په (جامعه اسلامیه محمدیه) کې داخله واخستله او څلور کاله مې هملته دهیواد مشهور او نامتو علماو کرامو لکه شیخ الحدیث مولنا عبدالقدوس جان صاحب رحمه الله ، شیخ القرآن مولناالحاج محمدصادق رحمه الله ، شیخ الحدیث الحاج مولنا فضل الرحمن پکتیاوال رحمه الله ، استاذ الاساتذه الحاج سیدقریشی رحمه الله ، استاذ الاساتذه الحاج مولنا نورمحمدثاقب دامت حیاتهم او نور وګڼو علماؤ کرامو نه دفنونو ګڼ کتابونه ولوستل ، دطالبانوداسلامی تحریک د پیل په کال مې دهیواد نامتو او منل شوی عالم شیخ الحدیث ماهرالفنون مولناشهاب الدین دلاور دامت حیاتهم او استاذ الاستاتذه مولنا سیدقریشی رحمه الله نه د فنونو ګڼ شمیر کتابونه ولوستل اوهم مې دجناب شیخ القران والحدیث مولنامحمداسماعیل رحماني دامت حیاتهم څخه ځیني کتابونه

ويلي ، دغه کال کتابونه مې لاختم شوی نه ؤ چې داسلامي تحريک څرک له قندهار څخه وځليد ، نودکندهار دړومبيوسيمولة فتحي پرته دنوروولاياتو د طالبانو په اولني کاروان کې مې د طالبانو له سپيڅلي تحريک سره ملګرتيا پيل کړه، څو کاله درس رانه پاته شو ، بيامې دخوست دجهادي مدرسه کې وړه دوره او په راتلونکي کال کې مې لويه دوره دحقانيه په نامتو جامعه کې سرته ورسوله او له همدې جامعې په ممتاز درجه فارغ التحصيل شوم، له فراغت نه وروسته مې په مختلفو مدارسو کې د تدريس چارې په مخ بوتلې ، دفنونو، فقهي ، تفسير او احاديثو اکثر کتابونه مې تدريس کړي.

**پوښتنه** : پنځه کاله ، موپه بګرام کې دوحشي امريکايانوشکنجي وزغملي ، که مهرباني وکړی ، اوله درنو لوستونکوسره داجريان لږ شريک کړي ، چې په کومه نيته اوچيرته ونيول شوی ، اوکه دچاپي اچولوهغه شيبي په مختصرډول انځور کړی .

**ځواب** :

د ۲۰۰۸ کال دسپتمبر په اوله نيټه دوحشي امريکايانو لخوا دلوګر ولايت دبرکي برک ولسوالي د (الله دادخيلو) دکلي ديو دين دوسته مظلوم مسلمان په کور کې په داسې حال کې د نورو ۱۰ کسانو په ملګرتيا کې ونيول شوم چې مسلمانانو د رمضان المبارک د دويمې روژې دنيولو په اراده د پيشمني تياری کاو، امريکايان په ډير وحشت اول کورونو او وروسته په يوه وړوکې باغچه کې غلي غلي دميلمنو حجرې ته په داسې حال کې راغلل) چې مونږ په خوب ويده ، اووسله هم نه وه راسره ، په ډير وحشت ئې ټول ملګري ولچک کړل، پوښتنې ئې ډيرې ناترسه او رويه يې ډيره ظالمانه وه، اګر که چاپه په ما اوزماپه ملګرو وه او دخلکو دوينا په اساس له دی وړاندې په ټول لوګر کې داسې پراخه او همه ساحه نيونکې چاپه نه وه وهل شوې ، ليکن په اول وهلت کې دمونږ دنه پيژندلو په اساس چې ځانونه موختګر او مزدوران معرفي کړل دومره وحشت ونه کړلکه څومره چې دوي په کوم تکل راغلي ؤ، دلوګر بيس ته ئې يووړلو، درې ورځې هلته ؤ او بيا د ملي امنيت د شش درک (۹۰) رياست ته نقل شولو .

**پوښتنه** : امريکايانو چې کله تاسي اسير کړی ، ړومبي تورونه يې په تاسي کوم ولګول او ستاسي عمده ځوابونه ورته څه وو.

**ځواب** :

امريکايانو له نيولو وروسته دافغان دولت او ايتلافي ځواکونو په خلاف دلوګر، کابل او نورو ساحو په مختلفو عملياتو، دمجاهدينو په رهبري، او ددوی په ضد دامت دځوانانو په استخدامولوتورن کړم، زه پدې خبره معترف ووم چې يو ديني عالم، دمسلمان ولس روزونکي او ديني معلم يم، او نظرياتي له طالبانو سره ملګری يم، ځکه يوائې د اسلام د دين په اساس نه بلکې د بشريت دټولنې دهر قوم دقانون په اساس دخپل دين، وطن اوملي اوديني نواميسو څخه ددفاع حق هرڅوک لري ،البته امريکايانو او دهغوئ افغاني ملګرو په ما باندې دخپلو تورونوپه اثبات کې کوم اسناداوشواهدنه درلودل نو ځکه ئې زه خالص د

طالبانود اسلامی تحریک دعضویت په بناءپه پنځه کاله بندمحکوم کړم، او ددوئ دقانون په اساس دولت ! دمجاهدینود عضویت په جرم کی د(۱۹) مادی په بنسټ له پنځه کاله زیات په چا باندي دبند حق نه لري، او هغه ئې ټول په مابانـدی پوره بلکې زیات تیر کړل اودهمدی قانون په اساس چې زه د کومو تخفیفونو مستحق وم له هغو نه ئې تر اخره پوره محروم ساتلی ووم.

**پوښتنه** : جناب حسیني صاحب، شکنجي اوکړاوونه خو به طبعازیات وو اوناشوني به وي چې په دغه مرکه کي ځای کړای شي، که هسي دنمـوني په څیر د امریکایانو هغه مظالم اوکرکجنه رویه په ګوته کړی چې تاسي اونورو اسیران ورنه ډیرپه تکلیف اوزجر کې وی

**ځواب** :

دامریکایانو اودهغوي د افغاني ملګرو شکنجې او کرکجنې کړنې له بنـدیانو سره ډیري بوږونکې اوانسانیت ځپونکې وي، په امنیت کې د تحقیق په جریان کې هر نوعه شکنجی موجودي وي، وهل، ټکول، ځوړندول، کیبل کاری، په پلاس د بدن دغوښو شکول عادي خبري وې، البته دباګرام په زندان کې د بعضی استثنائې حالاتو نه بغیر په عامو حالاتو کې بدنی شکنجې ډیري نه وي ځکه دوي خلکو ته دا ظاهرولـه چې له بندي نه زمونږ په قانونکې یواځې ازادي سلبوو، نور د ټولو حقوقو نه مستفید کیدلای شي، خونه یواځې ددوي په قانون کې چې بنـدیانو کوم حقوق درلودل هغه یې پوره نه ورکول بلکې په یوه او بله بهانه به یې بعضې بندیانو ته بدني شکنجې هم ورکولې، دمثال په ډول بعضي نموني دلوستونکو په وړاندې بږدم

۱ - امریکایانو یو وخت قانون جاري کړوچې په پنځه څلویښت منټه کې دننه دننه به بندي یا خپل خوراک خوري او یا به ئی ناستو امریکائي پیردارانو ته بیرته ورکوي، د وړوکې دانی قدري شی به هم په پنجره کې دننه نه پاته کیږی، یوه ورځ په یوه پنجره کې د انګور یوه دانه په نافهمی کې له بندیانو نه پاته شوې وه، په مجازات کې یې پوره یوه میاشت د پنجرې ټول ملګري په داسې ډول مجازات کړل چې د تفریح حق ئې ترینه واخیست، او په ۲۴ ساته کې یې هر بندي ته خالص دومره خوراک راوړ چې دوړوکې منې حجم ته هم نه رسیده او هغه هم په داسې کیفیت چې د ډبل روټۍ اوړه به ئې تقریبا له دوه دری دجوارو، لوبیا او د الوله دانو سره په اوبو کی جوش کړي او بیرته په یخچال کې یخ کړي ؤ چې مواد به ئې ټول کنګل شوی، بوی ناک او نفس نه قبلونکی ؤ او له خوړلو سره به ئې په وجود کې دتعفن او د ډیر بد کیفیت احساس کیده، حال دا چې ددوئ په قانون کې خالص مجرم دجزا مستحق وي، دمجرم دجرم په اساس بل چاته باید جزا ورنکړل شي لیکن دوی به دیوه بندي دجرم په اساس چې هغه به هم په نافهمي کې ترسره شوي ؤ ټولو د پنجری شریکوالوته جزا ورکوله.

۲ -امریکایانو بل قانون جاري کړ چې دغاښونودصفا کولو بورش په د څو منټه استعمال نه ورسته بیرته پیردارته ورکول کیږی، نو یوه ورځ یې بورشونه تقسیم کړل، او ما خپل بورش لنډ

وخت کې استعمال او بل ملګري ته مې ورکړ تر څو پيردار ته ورکړي او زه په اوداسه بوخت شوم، هغه ملګري اول خپل بورش ورکړ او پيره دار دهغه بورش دهغه د بورش په خلته کې واچاؤ، بيا ئې زما بورش دما د نمبر په يادولو سره ورکړ ،پيره دار چې زما نمبر واريده نو ماته دمجازات د دسيسې دجوړولو په اساس ئې زما بورش قصداً په خپله په ځمکه وغورځاوه او بيايې پورته کړ او په خلته کې يې واچاوه، لږ شيبه ورسته يو امريکايي پوښتونکی راغی او زما نمبر يې واخيست ما ورته خپل ځان وښود چې زه يم، نو ده په ډير قهرجنه لهجه پوښتنه وکړله چې دغابښونو بورش دې ولې په ځمکه غورځولی ده، ما ورته وويل چې زه خو نيم خبر کله ، چيرته او څنګه مې په ځمکه غورځولی ، ده وويل چې لږ مخکې پيردار بورش درکړی ؤاو تا د استعمال نه وروسته په ځمکه غورځولی ده، له همدې خبري سره متصل هغه بل ملګري راجګ شو او ورته يې وويل چې بورش پيردار ته ما ورکړ او پيره دار په خپلو ګوتو بورش له مانه واخيسته او بيا يې قصداً په ځمکه وغورځاوه اودا زمونږ استاذده او دلته بلکل موجود نه وو، خپل اودس يې کاوه او که فرضادا ومنم چې بورش غورځول شوی نودا کار ماکړی ،زمونږ استاذ له دې خبرې بالکل خبر ندی ،خوامريکايانوسره له دی چې په مايې دکوم جرم اثبات نه درلود درمضان المبارک دمياشتې په مبارکوورځوکې يې زه کوټه قلفی ته مجازات دپاره وليږلم تر څو مجارات هم وموم او ددې مبارکو ورځوله اجتماعي عبادت او تدريس نه هم محروم شم ،ځکه دوئ ته معلومه وه چې دعلماؤ په څورولو ټول بنديان ځوريږي او له ديني تعليم نه هم بې برخې کيږي او هلته يې دمخکنې ذکر شوي خوراک په خوراک او نورو ربړو په ګاللو سره مجازات کړلم.

۳-بنديانو ددوی په قانون کې هره ورځ د سپورت او لوبو ميدان ته د تفريح دپاره وتلو حق درلود، يووخت بنديانو لږد ارام ساه اخيستی وه اودرمضان المبارک دمبارکو ورځو په راتللو يې دعبادت دپاره ښه په شوق تهيه نيولی وه، ليکن امريکايانو کوښښ کاوه چې په دې ورځو کې بنديان وځوروي او هر وخت به چې کله بنديانو لږد آرام ساه واخيستله نو دوی به يوه دسيسه ورته جوړه کړله اودمجازات دپاره به يې بهاني ورته لټولي، يوه ورځ بنديان د تفريح ميدان ته وتلي وو ، چې کله بيرته خپلې پنجري ته راوګرځيدل نو ګوري چې قرآن کريم په ډيرې بې حرمتۍ سره د پنجري په دروازه کې پروت ده، د رمضان المبارک ورځې وي ، دبنديانو احساسات جوش واخيستل او شورش يې شروع کړ او په نتيجه کې يې په لسګونو بنديان دکوټه قلفی مجازات ته د نورو مجازاتود ګاللوپاره د ډير وخت دپاره وليږل، البته امريکايانوبه اکثراً داسې کارونه په افغاني اجيرو ترجمانانو سرته رسول، او په دی کار سره به يې ځانونه دقانون له ملامتيا نه ظاهرابچ ساتل .

**خلاصه** :امريکايانو اګر که تظاهر کاوه چې مونږ دبنديانو دانساني کرامت ساتونکي يو ،ليکن په حقيقت کې به داسې بندي په باګرام کې وخت نه وي تير کړی چې په يونوم او بل نوم شکنجه شوی نه وي، البته ورځني شکنجي دومره ډيري وې چې اکثر وبنديانو خپل ذهني توازن له لاسه ورکړی ؤ .

**پوښتنه** : له تاسي سره په زندان کې کله ناکله دامریکایانولوړپوړي چارواکي هم مخ کیدل ، دهغوی به څه ډول برخورد وو او له تاسي نه به یې څه ډول غوښتني مطرح کولي اوستاسي ځوابونه به ورته کوم وو؟

**ځواب** :

دا ښکاره خبره ده چې له ډیرو بندیانو سره به امریکایي لوړ پوړي چارواکي مخ کیدل اوپه مابین کي به یې خبرې اترې ، حال پوښتنې اومکالمي کیدلې او ډیریې له ما سره هم مخ شوي او د زندانیانو په هکله مې خبري هم ورسره شوي دي، یوه ورځ له زندان نه بیرون دسیاسی حالاتو په هکله دیوې امریکایی لوړ پورې چارواکې (ښځی) پوښتنه راته متوجه شوله ، چون هغه او دهغې نور ملګري امریکایان دپوښتني په ځواب ډیر متاثره ،بلکې دسکوت او حیرت په دریاب کې ډوب شول نو ځکه غواړم هغه دلته نقل کړم.

ما نه ئې وپوښتل چې دافغانستان داوسني او وړاندیني سیاسي حالت په هکله ته څنګه نظر څرګندولی شي، ماورته دافغانستان دمعاصر تاریخ له لنډ تشریح ، دکمونیستانو او شوروي په مقابل کې دتیرجهاد، داخلي جګړواوهم دطالبانو داسلامي تحریک دقیام په ضرورت اوکارناموباندې له رڼاچولوورسته وویل : چې که مونږ افغانان په دغه کیفیت چې نن تاسې افغانستان ته راغلي یاست درشو، نو تاسو به له مونږ سره څه کړي وای ، نو په ډیره ماته لهجه ئې راته وویل چی مونږ به درسره جنګیږو، بیا مې ورنه وپوښتل چې که د تاسې په ولس کې بعضي خلک له مونږ سره داسې ملګري شي لکه څنګه چې اوس بعضي ناخلفه



افغانان له تاسو سره ملګري شوي اودافغانانوجاسوسي درته کوي ، نو تاسې به هغوی سره څه کول ، هغې راته وویل چې مونږ به هغوئ ووژنو) ماورته وویل هغه څیرې مو دواک په ګدۍ کینولي چې افغان ولس ئې د تیر وناورینو په سبب په لیدلو د قی اواستفراق احساس کوي ، دافغانانوپه خوښه اوددومیلون افغانانو دقربانیوسترارمان چې اسلامی شریعت نفاذوو ، دهغه په ځای په وچ زورمو دیموکراسی نافذه کړله ، دافغانانوامنیت اوثبات موترینه واخیست ، نیږدې یومیلون افغانانوموشکنجه اووربرول ، ډول ډول اوناترسه بمونه اوممنوعه وسلې موپرې وکارولي ، نوپه داسې یو حالت کې چې نن افغانان ستاسو دکړنولـه وجې ورسره لاس اوګریوان دي اوځوریږي ، که مونږ افغان ولس له تاسووپوښتو، چې اوس تاسې ته په کوم نظروګورو، نو دتاسو ځواب به څه وي؟

دغې میرمن اولوړپوړي پلاوې نه یوائې چې کوم

ځواب رانه کړ ،بلکې د حیرت اوسکوتپه دریاب کی همداسی ډوب پاته شول او همدا شځه یوخت بیا راسره مخ شوله او په ډیر تاکید ئې راته ځرګنده کړه چې که درته ووایم چی دتاخبری مو په ذهن د یومیلون کرته نه زیات ګرځیدلي او کړ نګیدلي ، نودرواغجنه به نه یم !!

**پوښتنه** : دکابل رژیم څومیاشتي وړاندې دعوه وکړه چې دبګرام زندان چاري له امریکایانوڅخه دوی ترلاسه کړي داخبره سمبولیک اونمایشي وه، که حقیقت یې لاره .

**ځواب** :

افغانانوته دباګرام دزندان چارې په لاس ورکول یوسمبولیک حیثیت درلود، په اول وهلت کې خالص دزده کونکو اوناظرینو په ځیر ول او وروسته په خدمت اوستړیا کونکو چارو اګر که افغان ګمارل شوی وو، لیکن دچارو اصلي واک دامریکایانو په لاس کې ؤ، دمثال په توګه دافغانانوله راتګ وړاندې دهرې پنجرې په مخکې دپیره دار لپاره داسې میزونه کیښودل شوی ؤ چې ډیر ښه اود موادو اوساتلو دپاره پکې ډیر دخلونه جوړ شوی ؤ ، خو کله چې دپنجرو په پیره افغانان استخدامیدل نوهغه میزونه یې تري لیري او په عوض کې یې داسې میزونه ورته راوړل چې په سر کې ئې یواځي یوه تخته درلوده اونور دخلونه پکی نوو موجود او دبعضی امریکایانو له خولي ځیني بندیانانو ته ویل شوی ؤ چې دا میزونه مو ځکه بدل کړی چې دموادو ساتلو واک افغانی عسکرو ته نه ورکوو او نه دومره اعتبار پري لرو، بیا مې یوامریکایي افسر راوغوښت او ترینه مې وپوښتل چې تاسو د افغانانو په اردو اقلاً دیومیز اعتماد نه لری ، نو مونږ به په داسې اردو د ټول افغانستان دساتلو اعتماد څنګه وکړو، سره له دی چې دجواب راوړلوغوښتنه می د ډیرو بندیانو په مخ کی ترینه وکړله لیکن نه ئې په خپله ځواب راکولای شو او نه ئې له خپلی اداری څخه ځواب راته راوړ.

یوه ورځ داردو په لیکه کې دبندیانو دچارو لوی قوماندان جنرال فاروق خان چې په ختهه دهرات دشیندندپه قوم بارکزی او دکرزی داداری لخوا ورته د زندانیانو دچارو پوره واک ورکړل شوی ؤ، وغوښتل چې له زندانیانو سره د بعضی مشکلاتو دحل په هکله یوه جلسه دائره کړي او د امریکایانو له مشوری پرته ئې په خپل امر د زندانیانو ځیني مشران وغوښتل، بندیان د جلسي کوټې ته راجمع شوي وي و، خو کله چې فاروق خان ورته راته نویوبې رتبې امریکائې عسکر ورته له بامه رانښکاره شو او ترینه ویې پوښتل چې داڅه دي؟ ورته یې وویل چې میټنګ (جرګه) ده نوامریکایي په توهین آمیزه لهجه ورته وویل چې اجازه نشته ، په دی مهال فاروق خان د جلسې په طرف راروان وو څه ساحه راغلی ؤ لیکن کله ئې چې د امریکایي خبره واوریدله نوله همغه ځایه بیرته ورګرځیده او له ډیرې خجالتی او خړ سترګی سره ئې ددی توان په ځان کې ونه لید چې اقلاً دوه قدمه نور مخکي راشي

مونږ ټول زندانیان ډیر حیران شولواوافسوس موو کړوچې کاشکې مو دافغانیت په جامه اونسبت کې داسې ذلیلې اوګوډاګی څیرې نه وای لیدلې .

خلاصه داچې په خدمت افغانان ګمارل شوي و، لیکن

دواک اصلي محور امريکايان ول ،تر دې چې په قضا کې به اګر که افغاني قاضيان له ډېرو ښو او غښتو چينو سره ناست ول او زندانيانو ته دا سې معرفي کيدل چې د قضا پوره واک ورسره ده، ولې فيصله به پټه هغو امريکايانو ورته کوله چې له دوی سره دمشاوراوهمکار په بڼه ناست اوګمارل شوي وو

يواسير په داسې حال کې د قضا خوني ته بيول کيده چې هلته به بل زنداني دقضا دحکم دپاره دقضا په دفتر کی ناست ؤ ،يوه ورځ يوه مجاهداسيريو امريکايي چې په اصطلاح دقضاپه مجلس کې ناست وو په داسې حال کې وليد چې ديوه لاس په ټولوګوتويې قاضي ته اشاره وکړه اواخبره يې په ذهن کې وردننه کړه چې دغه زنداني ته پنځه کاله قيدوليکه ، دې زنداني مخکې له دې چې هغه پخواني زنداني ته دحکم ابلاغيه ورکړل شي ، نورو زندانيانو ته وويل چې نوموړی زنداني ته پنځه کاله قيد ورکول کيږی، زندانيانو په خندا ترې وپوښتل چې ته څه پري خبر شوي، علم غيب خو به نه لری ، هغه وويل چې ما خو داسې يوه صحنه وليدله ،چې افغان نما قاضي دامريکايی ستر ګو او لاسو ته کتل چې له دغه اسيرسره څه وکړو، هماغه ؤ چې لږ ساعت وروسته هغه زنداني ته په اصطلاح دقضا له لوري دپنځو کلونو قيد حکم ابلاغ شو

**پوښــــتنه** : يوڅو جالبو خاطرو ته که اشاره وکړي چې دزندان په اوږدو کې ورسره مخ شوي ياست اواوس هم درته مهمي اوجالبي دي.

**ځواب** :

زندان اګر که په ظاهری ځيره دژوندیو ګور، دازميښتو کور، د دښمن دخندا اوددوستانو دتجربې ځای دي، ليکن له دې سره سره زندان دعبرتونو درسګاه، دتجربو اواخلاقو پوهنتون، د زغم ،تحمل، اود ترخو غړه پونو دتيرولو پوهنځای، او د انسان او بشري اقوامو دعاداتو، کلچر او امتيازی خصلتونو د پيژندلو دپاره بهترينه مدرسه ده، زندان د کائناتو له خالق او پالونکی ذات جل جلاله سره دالتجاء او مناجات دپاره برترينه خلوت ګاه اود زهد او رياضت دپاره کمال ښونکی تعليم ګاه ده. په زندان کې هغه څه حاصليږی چې له زندان نه بيرون نه تر ستر ګو کيږی، بناء په زندان کې مو ډير څه ليدلي، او اوريدلی دي اود ټولو ليکل او دلوستونکو په وړاندی نقل کول ډير مشکل بلکې ناشوني کار ده ،ولې د اذهانو د تنوير او ايقاظ دپاره بعضی هغه څه ليکم چې د زندانيانو د ايمان دکمال ، جرأت، زغم، او دمسلمه امت ترجماني اوداېماني فضائلو نموني پکې نغښتي وي.

**زندان يو تعليم ګاه** :

دلوی ذات جل جلاله په خاصه لورينه او دربانی علماء په باتدبيره او مخلصانه مجاهدو سره د باګرام زندان داسې مدرسه جوړه شوي چې د زمکې تر پوست ممکن بل چيرته داسې مدرسه وجود ونه لری، ځکه هلته يواځي دفنونو او دتعليمي نصاب دکتابونو زده کړه نه بلکې له دې سره سره دعقايدو، اخلاقو، تجربو او روښانه افکارو بهترينې زده کړی کيدلي، علماؤ دکفر اصلی ځيره زندانيانو ته دکفارو په شومو او وحشت ته ورته اعمالو سره ورپيژندله، هره پنجره به د عالم دپاره په

حقیقت کې د مدرسې دیوې درسګاه شکل غوره کړی وه په کومه پنجره کې به چې عالم نه ؤ نو زندانیانو به هر اړخیز شورشونه کول ، تکلیفونه ، ربړی او مجازات به ئې ګالل ترڅوچې یو عالم پیداکړي اوورسره ووسي .

یووخت امریکایانو اراده وکړله چې دهرې پنجری په وړاندې د تلویزیون سکرین نصب کړی ، تر څو له دې لارې زندانیان له دیني زده کړونه په غفلت کې واچوي او په عوض کې خپل شوم او پلیدافکار د زندانیانو ذهنونوته منتقل وګرځوي ،لکن کله چې یوه شول چې زندانیان اراده لري چې که هر څه ربړی او زحمتونه او مجازات په مونږ تیریږی ، خوتړول به دتلویزونونو سکرینونه ماتوو نو همغه ؤ چې امریکایان له دې ارادی څخه شاته شول ، بیا ئې هرې پنجری ته دلوبو دپاره دلړو (چکې) دلرګیو نه جوړ ډیر ښه چوکاټونه راوړل لیکن اکثرو زندانیانو یا مات کړل او یا ئې په کومه بهانه بیرته مسترد کړل ، د باګرام په ټول زندان کی ممکن د ګوتو په شمیر هغو زندانیانو قبول کړي وي چې له یوې خوا یې تعلیمی سویه ډیره ټیټه او له بلې خوا کوم عالم ورسره وجود نه درلود .

**له امریکایانو سره دبعضی زندانیانو مکالمی :**

اکثرو زندانیانو به امریکایانو ته مخامخ دهغوئ کرغیړن اعمال او افکار بدون دکومې ویرې او ترهې غندل او د اسلام او مسلمانانو د عقیدې او اخلاقو سپیڅلتیاوي ورپه ګوته کولې، بناء د لوستونکو په وړاندی بعضي هغه مکالمی دلته نقل کوم چې ډیرې جالبې او زړه راښکونکې وې .

د باګرام له زاړه زندان نه نوي زندان ته له انتقال نه لږ وړاندې امریکایانو یو پروګرام شروع کړ چې هر زنداني به په هره شپږمه میاشت کې محکمې اوله لوړوپوړو امریکایانوسره مباشر مجلس اوشوراته بیایو، په شورا کې به د شورا رئیس ، څارنوال او څو نور لوړرتبه افسران په نظامی دریشیو کې ناست ول، یو بل افسر ظاهراً دبندي دنمائنده چې په واقعیت کې به د محقق وظیفه اجراکوله ناست ؤ، دشورا څخه څو ورځې وړاندې د بندی په نوم نمائنده له بندی سره وکتل د شورا دځرنګوالي اوپکې مطرح کیدونکي پوښتني او ټاکلی ساعت به ئې ورته په ګوته کړ او بیا به چې کله شوری دائره شوه نو اول به د شوری رئیس وغږیده اودمجلس اصول به ئې بیان کړل ،بیا به څارنوال په بندي خپل تورونه وارد کړل ،د شوری رئیس به له زنداني څخه جوابونه وغوښتل او د زنداني د تورونو د ځوابولو دپاره به د زندانی بعضي خپلوان، ولسي نمائنده ګان او وکیلان هم په اوله مرحله کې حاضریدل ،لیکن ددې په ځای چې هغوی او زنداني په یوه مجلس کې سره وګوري او یا په یوه مجلس کې د څارنوالی تورونه ځواب کړي په جدا جدا شکل هغوی راغوښتل کیدل او ځواب به ترینه غوښتل کیده، چې په دې طریقه به حتمی د زنداني او دهغه دخپلوانو په خبرو کې په بعضی ټکو کې تضاد راته چې دا به د زنداني د پاره دجرم د ثبوت د بیلګي شکل درلود او په واقع کې د شوری دا نوعه مجلس یو داسې نوعه تحقیقاتی ټیم ؤ چې مخی ئې کوم ساری نه تر سترګو کیده. د زنداني نماینده به هم ددې په ځای چې د څارنوال تورونو ته ځواب ووائې په زنداني هغه تورونه واردول چې یا به له څارنوال نه هیر او یابه پاته شوي وو ،بناء په ظاهره دمحکمی او په واقعیت کې د تحقیق یو مجلس ؤ.

یوه ورځ یوه زنداني ته دمجلس په اخر کې د شوراد رئیس له خوا وویل شول چې ته خو به کومه خبره نه لري ، زنداني ورته وویل زه غواړم چې په خپل یوه جرم اعتراف وکړم ، د شورا رئیس او نور ملګري ئې ډیر خوښ شول او دملي اردو عسکر چې د پیرې دپاره ولاړ و لیري کړ او په ځای ئې یو امریکنی عسکر راوستل شو ، زنداني ته وویل شول چې دا مو د تا دپاره لرې کړ ، ځکه ممکن د ملي اردو په هکله کومه خبره وي ، چې خپله خبره ښه ډاډه وکړې ، زنداني تشکر ترینه وکړ او بیائي د شوراد رئیس په غوښتنه په خپل بیان داسې پیل وکړ .

مونږ چې دلته راغلي یونو په دې حقیقت اګاه شوی یو چې چا دلته حقیقت ویلی دی نو هغه د یو مجرم په حیث پیژندل شوی او زه غواړم دلته یو حقیقت څرګند کړم چې دا به تاسو په فکر زما د پاره یو ښکاره جرم وي نو ځکه می وویل چې غواړم په یو جرم اعتراف وکړم .

او هغه دا چې دلته (دافغانستان خاوری ته) مقدونیان راغلل، ایرانیان، چنګیزیان او څو کرته انګریزان هم راغلل، شورویانو هم مستقیمه مداخله وکړله چې تاسو ته معلومه ده او غربیان هم څو کرته دلته راغلی ؤ، هغوی ټول یا دلته مړه شول او یا بیرته لاړل، لیکن دهغوی کردار او تاریخ له چاپېټ اوهیرندی ، هغوی چې څه کړی دی هغه ټول ثبت او موجود دي ، چا چې ښه کړي دي هغه هم ثبت دي او چا چې بد کړي دي ، هغه هم پاتي دي . د تاسو د راتلو په اړه نه غربیږم چې تاسي راتللی نو د کومې مذهبي (صلیبي) جګړي اعلان موولې وکړ ، پدی هم څه نه وایم چې دافغانستان له رسمی سفیر سره مو د ټولې دنیا د بین المللي قانون په خلاف څه وکړل ، په دې هم څه نه څرګندوم چې له تسلیم شویو جنګیالیانو سره مو په شمال کې له لاندې نه د پترولو داورونو په بلولو او له پاسه پری د بمبارد کولو عمل ولې اجرا کړ ، پدی هم نه غربیږم چې د افغانستان د جنوبی اړخ قومي جرګه تاسي ته د سولې له ښه پیغام سره او د مشکلاتو د حل د تفاهم دپاره چې راروانه وه، په کومه ګناه موهدف وګرځوله ، پدی هم څه نه وایم چې له ځانونو سره مو په افغانانو کې څوک او څنګه خلک راوستل، پدې هم څه نه څرګندوم چې د افغانستان له دین، دود او کلچر سره مو څه وکړل، خالص پدې خبره غربیږم چې له زندانیانو سره مو څه وکړل او په دې هکله څه نه وایم چې ولی مو زندان ته راوستې دي او کوم جرم اسناد او شواهد پری باندی لری کنه ، فقط دومره وایم چې تاسې د افغان ولس په ودونو ، جنازو او دنورو ولسي پروګرامونو باندې چې کله بمبارد وکړی او په لسګونو او سلګونو خلک شهیدان کړی نو د تاسي کوم قومانداان په میډیا کې خالص دومره قدرې ووایی چې (ښښنه غواړو) لکه تاسی ډیر بندیان په کوم مشکوک او مبهم اتهام باندی زندان ته راوړی ، په کلونو، کلونو هغوی په زندان کې واچوی ،مګر هغوی سره کله هم د ښښنی معامله نه کوی .

تاسو د هرې پنجرې په وړاندې بین المللی قوانین چې په ژنیو کې فیصله شوي په لوحو کې لیکل شوي زړولي ، په هغوی مو د زندانیانو د دین ، عزت او دعلاج د پاملرني اصول په ګوته کړي دی ، لیکن د دین عزت مو هغه ورکړ چې ځو ورځې وړاندې مو د چارلی د زندان (دیوزندان نوم ؤ) په اوومه پنجره کې د

زنـدانیانو دینـی کتابونـه پـه ګنـدګی کـې وروشـنیدل، زنـدانیان اذانونـه کـوي او تاسـی دهغـوی د اذانونـو پیښـې د حیوانـاتو د اوازونـو پـه لهجـو سـره بدرګـه کـوي، او پـه هـر زنـدان کـې د زنـدانیانو د ذهنـي شـکنجو پـه سلسـله کـې مـو د قـرآن کـریم توهینونـه وکـړل، او همـدا اوس پـه سـلګونو داسـې مریضـان موجـود دي چـې د دردونـو ځګیرویـو ئـې نـور زنـدانیان پـه تکلیـف کـې اچـولي دي ، تاسـو تـه وخـت پـه وخـت خبـر درکـول کیـږي ،لـیکن د تاسـې دخبرتیـا سـره سـره دهغـوی د عـلاج کومـه پاملرنـه نـه ترسـترګو کیـږي، بنابرهرحـال اوس هـم د پټـی سـره ده کـه تاسـې پـه خپلـه پالیسـی کـې تغیـر راوسـت نـو تاسـو بـه هـم لـه نیـک انجام سـره مخ شـي او کـه نـه نـو لـه هغـه برخلیـک سـره بـه مخ کیـږی لکـه څنګـه چـې لـه تاسـو وړانـدې نـور د ټولـو جهانیـانو پـه وړانـدی ورسره مخ شول .

دې خبـرو د دوی قهـر دومـره راوپـارولو چـې دبیـان د آزادی د اصـولو سره ئې دا زنداني په جزا محکوم کړ .

یـوه زنـدانی د خپلـې شـورا دمجلـس کیفیـت نـورو زنـدانیانو تـه پـه لانـدی جملـو بیـان کـړ . دی وائـې ، لکـه چـې ز مـا شـورا خلاصـه شـوله نـو پـه اخـر کـې د شـوری رئـیس راتـه وویـل چـې تـه خـو بـه کومـه بلـه خبـره نلـري ، نـو ده ورتـه وویـل چـې زه غـواړم تاسـو تـه د تشـکر بعضـي الفـاظ وړانـدې کـړم ،هغـوی ټـول خوشـحاله شـول او پـه دی انتظـار شـول چـې پـه کومـو الفـاظو او د څـه تشـکر بـه کـوي، نـو زنـداني ورتـه وویـل چـې دلتـه پـه زنـدان کـې څـومره زنـدانیان دي، کــه عربــان دي ،کــه ازبکــان دي ،کــه تاجکــان دي ،کــه افغانــان دي او یـانور....دا یـو هـم لـه تاسـو ښـه خـاطره نـه لـري، یـواځی زه یـم چـې لـه تاسـو نـه ښـه خـاطره لـرم او هغـه هـم پـدې چـې مـا لـه تاسـو نـه ډیـر هغـه څـه زده کـړل چـې زه امیـد لـرم چـې دهغـو پـه واسـطه بـه مـونږ لـه ډیـرې لـویې ترقـی ! سـره مخ شـو، نـو د شـورا رئـیس ورتـه وویـل چـې څـه دی زده کـړي بیـان ئـې کـړه ، ده ورتـه وویـل چـې لـه اولـې ورځـې چـې زنـدان تـه راغلـی یـم او دا پـه دې وجـه چـې نـن ټولـه دنیـا ډیـر مختـګ کـړی پـه دنیـاکې لـه شـک پرتـه امریکـایوځواکمن اومترقـي ! هیوادبلـل کیـږي ،نـو مـا لـه اولـې ورځـې پـدې هیلـه مطالعـه او څارنـه شـروع کـړه چـې هغـه کـوم خصـلتونه او رازونـه دي چـې خصوصاتاسـو ئـې لـه دومـره لـویې ترقـی ! سـره مـخ کـړي یـی. او امیـد لـرم چـې مـونږ بـه هـم لـه ډیـرې ترقـی ! سـره مـخ شـو. نـو ځکـه لتاسـو نـه ډیر متشکریم .

او هغـه څـه چـې لـه تاسـو نـه مـی زده کـړی یـو لـه هغـو څخـه درواغ دی.

مـونږ تـه خپـل مـور او پـلار او استاذانو دا راښودلي وه چې درواغ بـه نـه وائـې ځکـه درواغ لـه انسـان څخه انسانیت قتلوي ،لیکن دلتـه چې راغلم نو پوه شوم درواغ بدنـه بلکـې پـه نننـی نـړی کـې دترقـی ذریعه ده ،کنـه نـو تاسـو بـه لـه دې ترقـی سـره څنګـه مـخ کیـدلی او ژونـدی بیلګـه یـې دا ده چـې زمـا ددی مجلس نمائینده نه پـه تیـر مجلس کې پوښتنه وکړلـه (او لـه تاسو سره ئې ریکارډ هم موجـود ده) چـې زه خبـر شـوی یـم چـی د تاسـو او طالبـانو تـر مینځ پـه قطـر کې د سولی په باب ناسته شوی ده ،بناء که مونږ ته معلومات راکړی چې پـه کومـو ټکـو ناسته شوي او څـومره پر مختـګ پکـې شـوی ، ده راته وویل چې زه نه یم پری خبـر، نو زه په خپل فکر کې په دې خبـره ډیر متعجب شوم ، عجیبه ده زه د

ځلورو ديوالونو په مينځ کې له نور ولس نه لرې بندي ، سترګې غوږونه مې په پرده کې له دې خبرې خبر يم او دې وائې چې زه نه يم پرې خبر ، دا خو ښکاره درواغ دي، نو زما يقين راغی چې دې په خپله رتبه کې چې ستوري نشان ته رسيدلی دی ، نو په درواغو رسيدلی ده !؟

بل هغه څه مې چې له تاسو نه زده کړي دي هغه دا دي چې کله يو انسان له بل انسان سره بندي شي نو دې بندي انسان ته د انسان په حيثت بايد ونه کتل شي، او دی دپاره ژوندي بيلګه دا ده چې څو ورځې وړاندې د امريکايانو د بد چلند په مقابل کې بنديانو شورش شروع کړ او دې شورش له ځان سره هر جانب ته ډيرې ناخوالې درلودلې، شورش تر دې حده ورسيده چې يو ښائيسته ، حياناک او تکړه ځوان سره له دې چې افغانان د خپل اسلاميت او افغانيت په بنا دومره حياناک دي چې دا خو څه چې په خپلو ګندګيو بل انسان وولي، بلکې د بل انسان لخوا په خپلو ګندګيو په ليدلو هم د شرم احساس کوي، ليکن دا ځوان له خپل دود نه خلاف په پټه تللی ؤاو خپل ګندګی ئې راخستی وه او بل يو انسان ئې په دا مخ پرې وويشت نو ما په دا خپل ضمير کې دا کار ډير وغانده، خو له دې نه مې زيات هغه څوک وغانده چې دا ځوان ئې تر دې حده مجبوره کړی ؤ چې دخپل دود او افغانيت په خلاف داسې عمل تر سره کړی !




بنا بر هر حال يوه ورځ د ايجوکيشن دوه کسان راته راغلل او له ما نه ئې وغوښتل چې ته د زندانيانو استاذ ئې او هغوی دتا ډير قدر او احترام په زړونو کې لرې ،بناءً که مونږ سره همکاري وکړي او دا شورش دبنديانولخوا بند کړل شي، ما ورته وويل چې له دې ځای نه نيولې د زندان تر اخره پورې ،د ټولو بنديانو لخوا د شورشونو د نه کولوزمواريم ، ليکن ديوې خبرې زمه واري تاسې راته وکړي ،چې ډير اسانه ، بهترينه او سپيڅلې خبره ده او ددې خبرې دلاس ته راوړلو دپاره تاسو د ټول جهان په سطحه دعويدارهم يی، نو دوی په ډيره عجله وپوښتل چې هغه کومه خبره ده ، نو ما وويل هغه دا چې دې بنديانو ته په انساني حيثيت سره وګوری ، !!

هغه امريکايان په ډير قهر رانه بدون دکوم ځواب وګرځيدل او نه يې کوم ځواب دخپلې اداری لخوا نه راته راوړ، نوثابته شوه چې بندي انسان ته د انسان په حيثيت بايد و نه کتل شي او دا د ترقی دلاس ته راوړلو دپاره بهترينه ذريعه ده !!

دبندي خبرو، د شورا د رئيس قهر راوپاراو بندی ته ئې وويل چې ستا وخت نور ختم شو او نوردخبروحق نلري

نورې هم ډيري زړه راښکونکي مکالمې د بنديانو لخوا امريکايانو سره شوی ، ليکن دموضوع دا وږد والی له امله نور ورته دپای ټکی ږدم. **مننه**

نویسنده: سید عبدالله رفاعی



# ماهـواره ، انترنیت ، وجوانان !!

او جوانی متقی و پرهیزگار بود که با عده ای از جوانان صالح ارتباط داشت ، او نمونه دعوتگر صالح بود. قرآن را حفظ داشت و نمازهای فرض را همیشه در مسجد می خواند ، شب ها را به قیام می گذراند و به درگاه پروردگارش تضرع می کردو روزها را در طلب رحمت خدایش روزه می گرفت تا این که دستگاه ماهواره وارد خانه اش شد. این دستگاه پلید با وجود مخالفت او پا به خانه ی شان گذاشته بود ، او خیلی سعی کرد تا مانع این کار شود ولی همه ی اعضای خانواده با او مخالفت می کردند ،در برابرش ایستاده بودند ، از دستگاه ماهواره وانترنیت دفاع می کردند ، می گفتند که به وسیله ی آن از اخبار سرتاسر دنیا مطلع می شوند و ماهواره دستگاهی است که می توان به راحتی آن را تحت کنترل گرفت و به دلخواه از آن استفاده کرد و در آن همه چیزهای بی ارزش و هم چیزهای با ارزش است و خوب و بد ، ما از برنامه های خوب و آموزنده ی آن بهره می بریم و برنامه های بد آموز آن را رها می کنیم. او بلاخره تسلیم شد ، چون همان طور که می گویند اکثریت بر شجاعت غلبه می کند. او نیز به همراه سایرین به تماشای برنامه های ماهواره پرداخت.

ولی آیا شیطان به این جوان فرصت می دهد بدونه این که او را وسوسه کند و به گمراهی بکشاند؟! شیطان توانست با مکر و فریب همه ی افراد این خانواده را گول بزند و کار آنان را برایشان زینت دهد ، پس چرا این جوان را امتحان نکند؟ چرا دقیقا او به دام نیفتد؟ پس او را امتحان میکنیم!

شیطان او را این گونه وسوسه کرد که : این دستگاه خوب و بد دارد ، چرا از آن استفاده نمی کنی؟ آن چه مفید و آموزنده است را بگیر و آن چه بی فایده و بد آموز است رها کن. او از این پیشنهاد خوشش آمد ، ولی با این وجود باز هم جلوی خودش را گرفت ؛ ولی شیطان دوباره به سراغش آمد و گفت : ماهواره برنامه های خوب و مفیدی دارد که در زندگی به دردت می خورد ، چرا امتحان نمی کنی؟!

بعد از اندکی تردید دستگاه را روشن کرد و ای کاش این کار را نمی کرد ، چشمانش به منظره ای افتاد که باعث شد که در جایش خشکش بزند و رنگ از رخسارش بپرد ، او نتوانست دستش را دراز کند تا دستگاه را خاموش کند ، از آن لحظه به بعد یک لحظه دستگاه را ترک نمی کرد. دستگاه او را سحر کرده بود ، چشمانش را دزدیده بود و عقلش را به کلی سلب کرده بود ، تا جایی که کم کم در نماز جماعت سهل انگاری می کرد و بعد از مدتی نماز را در خانه و در حالی که قلبش با ماهواره بود می خواند ، کم کم در نماز خواندن تنبلی و سستی کرد و بلاخره این بیچاره ی بینوا نیز به دام گرفتار شد ، از خداوند متعال ثبات و استقامت مسالت داریم و از ذات سبحانش طلب هدایت می نماییم.

دستگاه ماهواره الان در تمام خانه ها پخش شده است که جز فتنه و بلایی خانمانسوز چیزی دیگر نیست. شرش همه جا را فرا گرفته است عده هی از مردم بهانه های پوچ و بی خود برای استفاده از این دستگاه می آورند که ممکن است مردم را قانع سازد ، ولی این دلایل و بهانه ها خدای سمیع و بصیر را که از رازهای پنهان در قلب ها با خبر است ، قانع نمی سازد ، پس آگاه باشید از آن چه بر شما می گذرد ، چون این موضوع به این سادگی ها نیست.

# تاریخ هجری ؛ شاهکاری ماندگار، حضرت عمر 

عبدالستار ـ ح

## (فرمانروای نامدار)

در زمان پیش از اسلام و صدر اسلام مردم برای مشخص کردن روزها و سال‌ها، از مهم‌ترین رویدادهایی که در جامعه آنان رخ داده بود، تاریخ را حساب می کردند که برخی از حادثه‌ی فیل و بعضی از جنگ‌های فجار و .... سال‌ها را بر می‌شمردند. ایرانیان و رومیان نیز تاریخ‌های خاص خودشان را داشتند و می‌طلبید تا مسلمانان نیز برای خویش تاریخی اختصاصی داشته باشند؛ اما در زمان پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم و حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه این فرصت فراهم نیامد تا برای این موضوع چاره‌اندیشی شود.

زمانی که حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به جای ابوبکر صدیق رضی الله به خلافت رسید، پس از گذشت حدود دو و نیم سال از خلافت، روزی سندی را به نزد ایشان آوردند که سررسید آن ماه شعبان بود. عمر فاروق رضی الله عنه پس از مشاهده‌ی آن، فرمود: منظور کدام ماه شعبان است؟ شعبان پارسال، یا امسال یا سال آینده؟

عمر رضی الله عنه برای حل این مشکل دستور داد که سران مهاجرین و انصار به مجلس مشورتی ایشان حاضر شوند و در این مورد بحث نمایند. پس آن که مشاوران ایشان گردهم آمدند، خطاب به آنان فرمود: برای مردم تاریخی را مقرر نمایید تا بر اساس آن کارهای خویش را تنظیم نمایند.

صحابه نیز در این مورد به بحث پرداختند. یکی گفت: از تاریخ رومی‌ها استفاده نمایید!

اما سایر صحابه با این پیشنهاد مخالفت کردند و گفتند: تاریخ آن‌ها طولانی است؛ زیرا مبدأ تاریخ آنان زمان ذوالقرنین است.

دیگری پیشنهاد استفاده از تاریخ ایرانیان را داد، اما سایرین مخالفت کرده و گفتند: آنان تاریخ خود را با روی کار آمدن پادشاهان تنظیم می‌نمایند و هر پادشاهی که بیاید، تاریخ قبلی از اعتبار می‌افتد.

آن گاه حضرت علی بن ابی‌طالب رضی الله عنه که مشاور ارشد خلیفه بود، پیشنهاد داد: مبدأ تاریخ اسلام را از هجرت پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم از مکه به مدینه منوره قرار دهید.

حضرت عمر رضی الله عنه پس از بررسی این موضوع، سرآغاز تاریخ اسلامی را هجرت پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم از مکه به مدینه

تعیین کرد و آن سال همین تاریخ برای برنامه‌ها و کارهای حکومتی و اسلامی به کار برده شد.

در مورد این که چرا محرم به عنوان نخستین ماه سال هجری مشخص گردید، حافظ ابن حجر عسقلانی در این باره می گوید: در مورد آغاز تاریخ اسلامی چهار چیز پیش روی صحابه بود که عبارت‌اند از: میلاد رسول خدا، مبعث، هجرت و وفات ایشان. از تعیین میلاد و مبعث به خاطر اختلاف نظر در مورد تاریخ دقیق وقوع آن‌ها، صرف نظر کردند و تاریخ وفات آن‌حضرت صلی الله علیه وسلم را به این خاطر که یادآور خاطره‌ی تلخی بود، نیز تعیین نکردند. بنابراین بهترین گزینه برای این منظور هجرت آن‌حضرت صلی الله علیه وسلم بود. و چون رسول خدا صلی الله علیه وسلم پس از بیعت عقبه‌ی دوم و در آغاز ماه محرم اراده‌ی هجرت نمود، ماه محرم را آغاز سال هجری قرار دادند.

به راستی هجرت سرآغاز اسلام بود؛ زیرا پس از هجرت پیامبر صلی الله علیه وسلم به مدینه منوره بود که اسلام قدرت یافت و توانست بذر توحید و یگانگی را در سراسر جهان گسترش دهد. هجرت سرآغاز تحولی عظیم در تاریخ بشریت بود که جانی دیگر به کالبد مرده‌ی انسانیت بخشید. هجرت مسیری برای رسیدن به خدا بود.



دلاور بهادری

## رئیس الوزراء
## امارت اسلامی افغانستان

.... قاری عزیزالله که زمان حکومت طالبان مؤذن مسجد ارگ بود از یک خاطره جالب دیگر ریس الوزراء یادآور شد و گفت: روزی با مرحوم ملا محمد ربانی در یک کاروان طالبان به قندهار سفر داشتم، موسم سرما بود و باد سرد زمستان می وزید، وقتی به یک منطقه صحرایی در ولسوالی گیلان ولایت غزنی رسیدیم، دیدیم که یک موتر باربری لب سرک ایستاده است، ملا محمد ربانی موتر خود را نزدیک همین موتر باربری توقف داد، شیشه موتر را پایین کرد، دید که درایور موتر در داخل موتر نشسته وبه بخاری گاز خود را گرم میکند، ملاربانی پس از ادای سلام از ایشان پرسید: برادر چرا موتر را توقف داده اید؟ گفت موترم چالان نمیشود، کسی نیست که به ما همکاری کند، ونه موتر را رها کرده میتوانم. ملاربانی گفت ما چه همکاری کرده میتوانیم تا موترات چالان شود، زیرا بسیار سردی است واینجا شب گذارنیدن بمعنی هلاکت خواهد بود. درایور گفت موترم فقط به تیله کردن چالان میشود، اگر بتوانید موترم کمی تیله کنید چالان خواهد شد.

ملا محمد ربانی مخابره خود را فعال کرد و به طالبانیکه از کاروان عقب مانده بودند صدا داد تا حرکت خود را سریع کرده زود بیایند، تمام وسایط کاروان متوقف شدند، و نزدیک به شصت یا هفتاد تن از طالبان جمع شدند تا موتر باربری را تیله کنند، ملا محمد ربانی شانه خود را به ارابه موتر داد، وهمراه با دیگر طلباء موتر را حرکت داد تااینکه موتر چالان شد و بسوی غزنی براه افتاد، وقتی ملا محمد ربانی به موتر خود آمد دیدم که ریش و شانه اش از بس اخلاصیکه در تیله کردن موتر کرده بود آلوده به گل بود، بعدا به رفیقان خود گفت این مردم سر ما حق دارند ما اولوالامر اینها هستیم، در راه هوسایی و رفع مشکلات اینها باید از هیچ کاری دریغ ننماییم. ....



## قرآن

نسیم کوی جانان است قرآن
شمیم عطر رحمان است قرآن
بود روشنگر راه سعادت
چو خورشید فروزان است قرآن
به گلزارش، خزان راهی ندارد
بهاران در بهاران است قرآن
صفای بوستان آسمانی است
شکوه باغ رضوان است قرآن
رهاند آدمی را، از جهالت
فروغ علم و ایمان است قرآن
طراوت بخش روح مؤمنین است
به جسم عارفان، جان است قرآن
به صدق و راستی همتا ندارد
رفیق نیک پیمان است قرآن
نهان در سینه او، سرّ عشق است
کلید گنج عرفان است قرآن
بود معجز، رسول هاشمی را
که در شأنش ثناخوان است قرآن
طبیب درد های بی دوا اوست
به جان خسته درمان است قرآن
تسلی بخش دلهای غمین است
چراغ شام حرمان است قرآن
خلل کی ره برد بر ساحت او ؟
بنائی سخت بنیان است قرآن
در آن سامان که سامان نیست کس را
پناه هر مسلمان است قرآن

## سرود مجاهد

ما مجاهد حقیم، قدرت خدا با ماست
هر کجا رو آریم، دست کبریا با ماست
از فراز سنگرها، چشم مصطفی با ماست
در طلوع هر صبحی، طرفه مژده ها با ماست

ما به پیکر ملت، بازوی توانائیم
اعتماد امروزیم، افتخار فرداییم

کشتی خدا جویان، نا خدا نمی خواهد
جز هدایت قرآن، رهنما نمی خواهد
آفتاب حق سایه، از هما نمی خواهد
این شهید راه حق، خونبها نمی خواهد

عاشقان کوی وی، رسم رهبری دانند
بندگان سر بازش، راه سروری دانند

ریشه های دشمن را، از زمین برون سازم
پرچم پلیدش را، از فضا نگون سازم
شیر روز پیکارم، خصم را زبون سازم
با هجوم مستانه، شور صد جنون سازم

بشکنم بدست خود، حلقه های زنجیرش
زیر پا کنم پامال، دام های تزویرش

سنگ سنگ این کهسار، لوح احترام من
خار خار این صحرا، شاهد قیام من
نور بخش این میدان، تیغ بی نیام من
سکه شرف تاحشر، مفتخر بنام من

جلوه گاه مردانست خاک غیرت انگیزم
بوسه گاه شیرانست خنجر شرر خیزم

از صدای تکبیرم، پشت دشمنان لرزد
خصم را ز بیم من، مغز استخوان لرزد
از شکوه شمشیرم، قلب خاینان لرزد
از نیاز شبهایم، سقف آسمان لرزد

می سزد بمن مسند، می سزد بمن درگاه
نغمه سرود من، لا اله الا الله

# روپۍ جانه

اسدالله رزین

دلتــه پیســې هلتــه پیســې هرخــوا پیســې چلیــږي
پــه ژبــه ورد پــه زړه کــې ذکربیخــې ښــې چلیــږي

بــل څــه تــه مــه ورګــوره دوی پسې څــه دوی پیــداکړه
ډیرڅــه بــه ووینــې تــرې تیرســه خــو روپــۍ پیــداکړه

غیــرت روپــۍ عــزت روپــۍ دلــې هــورې چلیــږي
پــه ژبــه ورد پــه زړه کــې ذکــر بیخــې ښــې چلیــږي

نورارزښــتونه مــنځ خــالي دي پــه کتونــه ارزي
یــومخ زاړه ترتــاریخ تیــر پــه یادیــدو نــه ارزي

ټــول پــرې اختــه بــس دروپــۍ جــانې نشــې چلیــږي
پــه ژبــه ورد پــه زړه کــې ذکربیخــې ښــې چلیــږي

کــورکې بــازار کلــي کیــږدۍ کــې همدغــه خبــره
دهرچــاخوښــه پــه زړه پــورې ښایســته خبــره

بــل موســم نشــته ددغــه موســم وږمــې چلیــږي
پــه ژبــه ورد پــه زړه کــې ذکربیخــې ښــې چلیــږي

کامیابــه مینــه شــااو خــواتــرې مینــان پراتــه دي
ترهرڅــه تیرتــردې جــاریږي شــیدایان پراتــه دي

لــه شعرســره هــم اوس همدغــه شــان نغمــې چلیــږي
پــه ژبــه ورد پــه زړه کــې ذکربیخــې ښــې چلیــږي

بــل شــی پــه کارنــه ده همدغــه ده د دزړو غوښــتنه
(زرینــه ) دغــه تمنــا د ټولــو خولــو غوښــتنه

نــورې مــزې شــوې بــې مــزې دغــه مــزې چلیــږي
پــه ژبــه ورد پــه زړه کــې ذکــر بیخــې ښــې چلیــږي

## د ابلیس وصیت خپلو سیاسي زامنو ته !

دعلامه اقبال د شعــر ژباړه
ژباړن : تسنیم الحق کاکاخیل

نــور دغــه روژتــي چــې دا لــه مرګــه نــه ویریــږي
دا روح د محمــــد یــي لــه بــدن نــه وباســئ

بــدل د غــرب فکــر پــه خیــالونو د یــورپ کــړئ
اســلام یــي لــه حجــاز او لــه یمــن نــه وباسـئ

پــه دیــن بانــدې دننګ د پښتنو دغــه عــلاج دی
بالکــل دغــه مــلا یــې لــه وطــن نــه وباسـئ

زړې خبــرې واړه لــه قریشــونه کــړئ هیــرې
هوســۍ یــې لــه ورشــو ددې ختــن نــه وباسـئ

د ســرو ګلونــو اور لا د اقبــال پــه پــوکي تیــز شــو
بــس دغــه غزلخــوان لــه دې چمــن نــه وباسـئ

## رباعــي

ابوالخیر

باز آ، باز آ، هر آنچه هستی باز آ
گر کافر و گبر و بت پرستی باز آ
این درگه ما درگه نومیدی نیست
صد بار اگر توبه شکستی باز آ

## رباعی سنایی:

غم خوردن این جهان فانی هوس است
از هستی ما به نیستی یک نفس است
نیکویی کن اگر ترا دست‌رس است
کین عالم، یادگار بسیار کس است

# ارتداد شته

# خود پل خشتي مظاهره چیان نشته



قاري حبيب

ردة و لا ابـــابكر لهـــا ... داد اسلامي نړۍ د سترګور عالم مرحوم ابـو الحسـن علي نـدوي صـاحب د يوې رسالې نوم دی، چې د معاصر شعوري او لاشعوري ارتـداد فتنـه يې پـه کـې څیړلـې ده، مـا هـم بايـد خپـل مضمـون تـه همداسې عنـوان ټـاکلی وای او بايـد ويلـي مـې وای چـې: ارتـداد شـتـه خـو ابـوبکر نشتـه... !

خو هـای افسـوس.. چې زه پـه هغه زمانه او نسل کې نه يم زيږيدلی چې د صديق او فـاروق غونـدې د د ديـــن داولوالعزمـــه پيکرونـــو د رازرغونيــدو تمــه تــري وکــړم، د صديق او فـاروق رضوان الله عليهم دوران جلا دوران و، هغوی چې دين يي پـه کماحقـه بڼـه منلی او تطبيق کړی و، هغوی چې لـه زکات څخـه د انکار لـه امله يي د عربو لـه بشپړو قبيلو سره جهاد اعلان کړ، په داسې

حال کې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم رحلت کړی و او عـرب لکه ډلې ډلې چې اسـلام تـه داخـل شـوي وو، همداسې ډلې ډلې لـه اسلامه وتـل، مسـلمانان لـه سخت امتحان او تزلزل سره مخامخ وو، خو دا د صديق اکبر ايمان و، چې ټول چيلنجونه يې له پامه وغورځول په پـوره متانـت يې د بشـپړ اسـلام د منلو نعـره پورتـه کـړه، د ارتـداد د فتنې په مقابل کې په ميړانه ودرېد، ترڅو چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه ورپاته دين يې بيرته په کماحقه بڼه په ټولو تطبيق کړ.

زه بـه لـه دې زمانـې او نسـل څخـه د صـديق اکبر او فـاروق اعظم رضی الله عـنهم غونـدې د اولوالعزمـه اتلانـو تمـه نـه کـوم، د خيرالقرون د کـوم رښـتيني مجـدد د راغبرګيدو تمه هم شايد ونه کړای شم، خو دا جرأت کولای شم چې نيمه پيړۍ شاته لاړ شم، ۱۳۴۹ هـ لمريز کال ته ستون شم، او په هغه زمانه کې دارتداد پـه وړاندې د مؤمن اولس د غبرګون او باعزمه استقامت ارمان وکړم.

د ۱۳۴۹ هـ ل کـال د ثـور پـه ۱۱ مـه د سليمان لائـق، کارمـل، اناهيتـا، سـلطانعلي کشتمند، خيبر او نوراحمد نور لخوا په چاپيدونکی پرچم جريده کې د بـارق شـفيعي شعر چاپ شو چې په يوه برخه کې يې د عملي کمونيزم په بنيانګذار لينن باندې درود ويل شوی و.

لـه دې اسـلام ضـد حرکـت سـره دهيـواد پـه لراوبـر کـې د کمونيسـتي مرتـدينو پـه خـلاف د پـاڅون غـږ پورتـه شـو، لـه کنـدهار، هـرات، بدخشـان، مـزار، پکتيـا، ننګرهـار او نـورو ټولـو ولايـاتو څخـه پـه زرګونـو علمـاء کرامـو، طالبـانو، محصـلينو او عـامو پـه ديـن مؤمنـانو د کابـل پـه خـوا احتجـاجي حرکـت پيـل کـړ، تـرڅو چې د کابـل پـه پـل خشـتي مسـجد او شـاوخوا کـې د مظـاهره کوونکـو شـمير

اتلس زره تنو تـه ورسيد ، دوی د ارتـداد ي حرکتونـو پـه خـلاف بيـانيې ورکـولې، احتجـاجي مارشـونه يـې کـول، او د مرتـدو کمونيسـتانو د مجـازات غوښتنه يې کوله.

د مؤمنـانو دا خوځښـت کـه څه هم پـه پـای کـې د شاهي رژيـم لخـوا بـې نظمـه او وپاشـل شـو، خـو کمونيسـتانو تـه يـې داسـې ټکـان ورکـړ، چـې ترډيـره يـې بيـا داسـې جـرأت ونـه کـړ، د کمـونيزم بـې دينـه ماهيت يـې بربنـډ او پـه خلکـو کـې يې منفـور کـړ، د پـرچم جريـده ترډيـره وتـړل شـوه او چلوونکو يې ځانونه مخفي کړل.

د هغه وخت سختو شرايطو او حکومتي جبر تـه پـه پـام سره تـش لاسو مؤمنانو په احسنه توګه خپل مسؤليت ترسره کړ، په ورځو ورځو يې په پل خشتي مسجد کې تحصن وکړ، او د ارتداد پـه وړانـدې خپـل غبرګون يې ښکاره کړ.

نــن ســبا يو ځل بيـا زمـوږ مسـلمان اولـس او هيـواد لـه هماغسـې حـالاتو سـره مخـامخ دی د روان کـال د اکتـوبر پـه پنځلسـمه دايکسـپريس پـه نامـه کابـل چـاپ ورځپـاڼې يـو داسـې مضـمون نشـر کـړ، چـې لـه سره ترپايـه لـه صـريح کفـر ډک دی، پـه دې مضـمون کـې پـه الله تعـالی ، کلمـه طيبـه او اسـلام بانـدې فـاحش اعتراضـونه شـوي، داالله تعـالی کړنـې ناسـمې او العيـاذ بـالله ظالمانـه بلـل شـوې، او اسـلام يـو داسـې ديـن بلـل شوی چې د انسان له حال سره مناسب نه دی.

ددې لـه کفريـاتو ډک اقـدام پـه اړه يـوازې دګوتـو پـه شـمير مؤمنـو هيوادوالـو خپـل غـږ پورتـه کـړ، خـو هغـوی هـم د دولتـي اجيرانـو او امريکـايي تبليغـاتي جاسوسـانو لخـوا د پاکسـتان ګوډاګيـان وبلـل شـول، د کابـل چـاپ پـه سـلګونو راډيوګـانو ، ورځپـاڼو او اخبـارونو کـې هـيڅ يـوې تراوسـه ددې کفـري اقدام په اړه داعتراض غږ نه دی پورته کړی.

د پـل خشـتي د پخـواني مظـاهرې يـو سـمبالوونکی صـبغة الله مجـددي هـم ګونـګ او پټـه خولـه ناسـت دی،نـور هغـه چـې يـو وخـت يـې ځانونـه د اسـلام او جهـاد دلارې لاريـان بلـل ، ددې بدمرغـه اقـدام پـه اړه پټـه خولـه ناسـت دي او تراوسه يې هيڅ شور نه دی خوځولی.

د امريکا پـه غيبر کـې لويـدلي دغـه بګيـل دروغجـن اسلامپال چـې دوی يـا يـې مشران ځو لسيزې وړاندې دپل خشتي د مظاهرو برخوال هم وو ، ورته وايو ، چې آيـا کمونيستانو اسلام ته لوی توهين کړی و او که دايکسپريس ورځپاڼې؟؟

کمونيسـتانو بـه پـه لينـن درود ويلـي و خـو د ايکسـپريس ورځپـاڼې د الله تعـالی پـه ذات اعتراضـونه کـړي دي، نـه پـوهيږو چـې دوی تـه ولـې دغـه صـريح کفـري اقـدام ارتـداد نـه ښـکاري، دوی لـه دې مسـئلې سـره هـم سياسـي چلنـد کـوي او داسـې انګيـري لکـه دا هـم چـې يـوازې دطالبـانو او امريکـا ضـد خوځښـتونو اړونده موضوع وي.

اې د ډالرو په نشه کې غرقو د اسلام دعوه دارانو !

کـه ربښـتيا پـه الله تعـالی ايمـان لـرئ ، کـه ربښـتيا پـه قـرآن عقيـده لـرئ او کـه ربښـتيا ځانونـه اسـلام او محمـد مصـطفی صـلی الله عليـه وسـلم تـه منسـوب بـولئ !نـو نـن ستاسـو پـه دې ټولـو ارزښـتونو بريـد شـوی ، ستاسـو ترټولـو لـويې سرمايې دين ته په سپکه کتل شوي او مسخره شوی دی.

د ايمـان تقاضـا داده چـې ددې جـرم پـه وړانـدې غـږ پورتـه کـړئ، الله تعـالی تاسـو پـه سـتر ازمـون کـې اچـولي ياسـت ، کـه ددې حالـت پـه وړانـدې خـاموش پاتـه شـئ نـو پـوه شـئ چـې خاموشـي کلـه کلـه د رضـايت پـه معنـی وي، ستاسـو خاموشي ددين په وړاندې ستاسو بي پروايي او بي احساسي ښيي.

## د امام اعظم (رح) حیرانوونکي جواب

یو سړي په خپل کور کې څه مال ښخ کړی وه او بیا یې هېر سوی وه سړی امام اعظم (رح) ته راغلی او فریاد یې ورته وکی، امام اعظم (رح) ورته وویل: دا د فقهي مسئله نده خو زه تاته لار درښیم ته ولاړ سه ټوله شپه لمونځونه وکه که خدای (ج) خوښه وه در یاد به سي! سړی چي صبا راغی ویل لمونځ مي وکی ممکن د شپې څلورمه برخه به نه وه تېره سوې چي په یاد مي سو امام اعظم (رح) ورته وویل: زه پوهیدم چي شیطان دي نه پرېږدي چي ټوله شپه عبادت وکړې کاشکي دي ټوله شپه د الله (ج) په عبادت تېره کړې وای. (شامي)

## دوه ملګري

## د نورو بد هېر کړئ، او ښه یې مه هېروئ

په یوه دښت کي روان وه. د سفر په ترڅ کي د دواړو تر مینځ د څه شي پر سر جنجال (خوابدتیا) راغلی. یوه یې بل ته پر مخ څپېړه (چپلاخه) ورکړه. مګر هغه یوه خبره هم ونه کړه. ولاړ او د ریګو پر مخ یې ولیکل: "نن زما تر ټولو خواږه ملګري پر مخ ووهلم".

دواړو خپل سفر ته ادامه ورکړه. ګرمي زیاته وه په یو ځای کي یې د اوبو یو ژور ډنډ ولید. دواړه ورغلل چي مخ او لاس پکښي ومینځي مګر د هغه کس پښه وښویېده چي هغه بل پر مخ وهلی وه او نږدې وه چي ډوب سي، خو ملګري یې لاس ور واچاوو او له مړینې یې وژغوره هغه چي کله د اوبو څخه راوختئ، ولاړ او د یوې ډبري پر مخ یې ولیکل چي: "نن زما تر ټولو خواږه ملګري زما ژوند وژغوره".

ژغورونکي تري وپوښتل چي مخکې مې په چپلاخه ووهلې د ریګو پر مخ دي ولیکل، او اوس مي چي له ډوبېدو وساتلې د ډبري پر مخ دي ولیکل؟ هغه جواب ورکړ: "کله چي څوک بد را سره وکړي باید بدي یې پر ریګو ولیکو چي د تېرېدني او بخښني بادونه یې پاک کړي، او کله چي څوک ښه را سره وکړي، باید نیکي یې پر ډبري ولیکو چي هېڅ باد یې پاک نه کړي".

درس:

د نورو بد هېر کړئ، او ښه یې مه هېروئ
خپل ښه مو هېر کړئ، او بد مو مه هېروئ

نن سبا که په دنیا کې د چا په خود ساخته انساني قوانینو باندې څوک نقد وکړي، د هماغه فکر لارویان یې په مقابل کې عکس العمل ښیي، خو کفارو او دهغوی جاسوسانو زموږ او تاسو په اسماني دین مخامخ برید کړی، او همدې بریدونو ته لا ادامه ورکوي، یو یې د الله تعالی ذات او عدالت نقد کوي، بل یې په میراث کې د الله تعالی په عادلانه تقسیم باندې تعریض کوي او په یوه ډول یې د اعتراض وړ بولي، او نور بیا نور ډول ډول اسلام ضد حرکات کوي.

په دې باید پوه شو چي دغه د مسلمانانو په وړاندې د نړیوال کفر ازموېښتي بریدونه دي، دوی غواړي په دغسې تعریضي حملو سره د مسلمانانو حساسیت وازمويي، که مسلمان اولس د دغو کفري حرکتونو په خلاف غږ پورته کړي او خپل ایماني غیرګون نړیوالو کفاروته وښیي نو بې له شکه به د دغسې حرکتونو مخ ډب شي، خو که مسلمانان بې احساسه پاته شي، نړیوال کفار او محلي ایجنټان یې زړور کیږي، او بیا به دغسې له توهینه ډک حرکات د ورځې خبره وګرځي.

# د زابل ولایت د تعلیم او تربیې بهیر ته لنډه کتنه

## (زابل یوځل بیا د پوهنې او روزنې په درشل کې)

زابل ولایت د هیواد په سوېل لوېدیځ کې د کابل - کندهار پر لویه لار پروت دی، چې ۱۷۲۹۳ کیلومتره مربع مساحت لري د زابل ولایت ختیځ لوري ته د غزني ناوه او د پکتیکا تروه ولسوالي پرته ده ، شمال ته یې غزني، لوېدیځ ته یې کندهار او اروزګان ځینې برخې او سوېل ته یې کندهار ولایت پروت دی.

دزابل په مرکز کلات سربېره یوولس ولسوالۍ لري، چې شملزي، ارغنداب، خاکران (خاک افغان، کاکړان) دای چوپان، میزانه، شاجوی، شهرصفا ، اټغر ، شینکۍ، نوبهار او سیوري نومېږي. په دغه ولایت کې ګڼ شمیر قومونه لکه توخي، هوتک او د دې ترڅنګ، ترکي، اندړ ، سلیمانخېل، ناصر ، خروټي، کاکړ ، احمدزي، پوپلزي، وردګ، یوسفزي، او شیراني اوسېږي د زابل ټول وګړي پښتانه دي. په زابل کې ډېر نامتو مشران لکه سلطان ملخي توخی، نازو انا ، ملکیار بابا ، بابا هوتک، شیخ متي بابا ، محمد هوتک (د پټې خزانې لیکوال) د میرویس نیکه پلار شاه علم خان هوتک او نور نومیالي تیر شوی دی.

څرنګه چې دزابل ولایت دهیواد دډېرو ولسوالیو او زیاتو نفوسو او پراخو سیمو درلودونکي ولایت دي دغه ولایت هم دنورو ولایاتو په شان دنصراني یرغلګرو په غوبل کې ویجاړ اوله ډېرو ستونزو او مشکلاتو سره مخامخ شوی دی نوموړی ولایت د صلیبي یرغلګرو په وړاندي دجهاد له لومړنیو مستحکمو سنګرونو څخه وو او ښکاره خبره ده دغه وحشي یرغلګر تر ټولو له مخه له دیني زدکړو کرکه کوی اوله دینی ارزښتونو سره دزړه له کومی دښمني لري نو ځکه ددوي لومړنی هدف ددیني او علمي مرکزونو لکه مدرسې ، مساجد ، خانقاوې او.... ورانول وي ځکه نودوی د دیارلس کلن جنګ په دوران کي ددیني مراکزو په ورانولو او تړلو کې څه سپما ونکړه ډیرې مدرسې یې ورانې کړې زیات مساجد یې و نړول ، د طالبانو حجرې یې وسوځولې ، او دیني عالمان یې څوک بندیان او څوک شهیدان کړل اوځېنې یې هیواد پرېښودلو او هجرت ته اړ ایستل.

ددوي دغه غیر انساني چلند هسې چوپه خوله بي عکس العمله پاتې نشو علماء کرام ، دیني طالب علمان اومتدین عوام ډیر ژر د دښمن مقابلې ته ودریدل او سخت ورسره وجنګیدل او دا هغه موده وه چې د تعلیم او تربیې بهیر هغه مهال نږدې په ټپه ولاړ ؤ خو اوس الحمد لله چې د سپیڅلي جهاد له برم نه ډک بیرغ یې پهډیرو سېمو کې رپېدونکی دی اوزیاتره سیمي یې فتح شوي نو ځکه د پوهنې او روزنې لپاره بیا زمینه ښه مساعده شوې او غوټۍ یې په غوړیدو دي په دې هیله د افغانستان اسلامي امارت د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون و پتېیله تر څو هلته د تعلیمي فعالیتونو لپاره لازم او ضروري اقدامات ترسره شي او ددې ولایت د نظامي او جهادي مسؤلینو سره اوږه په اوږه زیار و ایستل شي چې ددغه ولایت میړنو او علم دوسته خلکو ته د تعلیم او تربیې مشال او ډیوه ولګوي اودوی یې رڼا ته کېنوي ددغه

مقصد د ترسره کولو لپاره چې څومره پرمختګ شته دا دی اوس يې د لنډ راپور وړاندې کولو په ترڅ کې دغه تعليمي هڅې او فعاليتونه ستاسو په مخ کې ايږدو.

د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون په دې وروستيو کې د دغه ولايت د تعليمي امورو د څېړنې لپاره يو هيئت د يو پوه او با احساسه ديني عالم مولوي روح الله (رفيق) زابلي په مشرتابه د دغه ولايت بېلا بېلو سيمو ته واستاوو نوموړي هيئت د روان کال د شوال المعظم په مياشت کې کارپيل کړ د زابل ولايت ټولو ولسواليو ته سفرونه وکړل او له دغو تعليمي ادارو څخه يې له نږدې کتنه وکړه او هم يې ورسره اړوند کارونه وڅېړل او د ټولو هغو موارد و په اړه چې د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون له خوا د پلټنې او تفتيش لپاره ورته ويل شوي وو خپل د سترګو ليدلي حال يې داسې بيان کړ:

• زموږ سفر که څه هم چې له لوړو ژورو ستومانيو او ستونزو څخه ډک ؤ خو په عين حال کې ډير خوندور او له جهادي روحيې سره مل هم ؤ سفر د شوال المعظم په مياشت کې پيل شو په داسې حال کې چې د زابل ولايت د تعليم او تربيې مسؤلينو زموږ ملګرتيا کوله د دې ولايت ټولو مربوطه ولسواليو ته ولاړو او اړوند تعليمي ادارې او ورسره تړلي کارونه مو وڅېړل چې په نتيجه کې د دې ولايت له ليليه مدرسو، دارالحفاظونو او کليوالي نهاري مدرسو څخه مو په لاندې ترتيب سره له نږدې کتنه وکړه:

١. د شاجوی ولسوالۍ څلور مدرسې چې يوولس استاذان او دوه سوه او پنځه تنه شاګردان يې درلودل.

٢. د دايچوپان ولسوالۍ شپاړس بابه مدرسې چې نهه ديرش تنه استاذان او پنځه سوه او نهه ويشت کسه شاګردان يې درلودل.

٣. د خاک افغان په ولسوالۍ کې اته ويشت مدرسې چې نوي تنه استاذان او اوه سوه او نهه ديرش تنه شاګردان يې درلودل.

٤. د ارغنداب ولسوالۍ اووه مدرسې چې اتلس استاذان او دوه سوه او درې تنه شاګردان يې درلودل.

٥. د ميزانه په ولسوالۍ کې دوه مدرسې چې اته تنه استاذان او اووه نوي کسه شاګردان يې درلودل.

٦. د قلات مرکز يوه مدرسه چې څلور استاذان او پنځه ديرش تنه شاګردان يې درلودل.

٧. د شملزوولسوالۍ اته مدرسې چې څوارلس تنه استاذان او يو سل او نوي نفره شاګردان يې لرل.

٨. د سيوري ولسوالۍ دوه مدرسې چې څلور کسه استاذان او دوه ديرش تنه شاګردان يې درلودل.

٩. د شينکۍ ولسوالۍ درې مدرسې چې شپږ تنه استاذان او يو سل او پنځلس کسان شاګردان يې درلودل.

١٠. د نوبهار ولسوالۍ درې مدرسې چې شپږ کسه استاذان او يو سل او درې ديرش شاګردان يې درلودل.

١١. د اتغر په ولسوالۍ کې څلور مدرسې چې نهه کسه استاذان او څلور سوه او شل تنه شاګردان يې درلودل.

چې ټول ټال مدرسې اته اويا (٧٨) بابه وې او دوه سوه او نهه (٢٠٩) تنه استاذان او دوه زره او شپږ سوه او اته نوي (٢٦٩٨) شاګردان پکې روزل کېدل.

• د پورتنۍ مدرسو له زده کونکو څخه ازموينې او پوښتنې ترسره شوې د هغوی اخلاق، آداب او اسلامي خويونه ارزيابي شول او د مدرسو تعليمي پروګرامونه وکتل شول چې د ستايلو وړ وو د نصاب په هکله معلومات ترې راغونډ شول الحمدلله هرڅه يې په زړه پورې وو البته د تعليم او تربيې نصابچې اوس نوی ورته رسيدلی وو د عملي کېدو په درشل کې وو او هم تعليمي پروګرامونو ته مسؤلين او د مدرسو استاذان متوجه وو چې په راتلونکي وخت به هرڅه که خدای کول برابر شي.

• ددغه ولايت دتعليم او تربيې مسؤلين او د ولسواليو واكمنان چې علماء او مجاهدين وو د خپلې جهادي ، ديني او علمي روحيې پر بنسټ يې تعليمي چاروته زياته توجه درلوده په ولسواليو او تعليمي مركزونو به وخت په وخت گرزيدل او د خپل توان سره سم يې د تعليمي امورو د پرمخ تگ لپاره هلې ځلې كولې د ويلو وړده چې د دغو تعليمي مسؤلينو لپاره مواصلاتي او د نقل اوحركت وسائل او د هغوی لگښتونه د تعليم اوتربيې اوعالي تحصيلاتو د كميسيون له خوا برابرشوي وو.

• د تعليم اوتربيې اوعالي تحصيلاتوكميسيون له خوا چې كوم تعليمي توكي لكه دنهاري (كليوالي) مدرسو لپاره كتابونه,كتابچې او قلمونه وركړل شوي وو هغه ورته په ښه توگه رسيدلي او ددوی دخوښۍ سبب گرزيدلي وو او هغوی غوښتنه لرله چې په دې اړه له امكاناتو سره سم زياته همكاري وشي.

• د زابل ولايت جهادي مسؤلين په ځانگړې ډول ددغه ولايت محترم عمومي مسئول تعليمي امورو ته ډير متوجه دی او ددغه ولايت له تعليمي مسؤلينو سره هر راز همكارۍ ته ژمن دی او وخت په وخت يې ورسره مرسته كړې آن تردې چې د كليوالي مدرسو لپاره يې يو شمير كتابونه هم له خپله لوري هغوی ته را نيولي او ددوی داستفادې لپاره يې چمتو كړي وو او هغه هم پخپل وار له تعليمي مسئولينو څخه راضي ښكاريده اويو له بله سره په تفاهم يې دغه لړۍ پرمخ بيوله .

• ددغه ولايت علماء كرام اومخه ور بانفوذه كسان هم د خپل ديني, جهادي او علمي مسئوليت په بناء د تعليم او تربيې له مسئولينو سره پوره همكاري او مرسته كوله مناسبې مشورې يې وركولې تر څو د خپلو اولادونو لپاره د تعليم په ډگر كې د خدمت مصدر وگرزي او وياړ يې ترلاسه كړي.

# گلچین سخنان امام محمد غزالی

علم بی‌عمل، دیوانگی است و عمل بی‌علم، شدنی نیست.
علمی که تو را از معاصی باز ندارد و به اطاعت معبود وادار نکند ، فردای قیامت تو را از آتش دوزخ باز نخواهد داشت.
اگر امروز به دانشت عمل نکنی و درصدد جبران روزهای گذشته برنیایی، روز قیامت از آنانی خواهی بود که می‌گویند: خداوندا ! ما را به دنیا بازگردان تا کار شایسته انجام دهیم، و آنگاه به تو می‌گویند: احمق ! تو خود از آنجا آمده‌ای .امام محمد غزالی

خوشیها و لذتها بر سه درجه است:
اول آنکه پست تر است مثل شکم و زیر شکم، خلق بیشتر آن بدانند و بدان مشغول باشند و دلیل پستی این است که همه حیوانات با وی در این امر شریک بلکه غالبند ، همچون مگس و مور و کرم
دوم لذت غلبه و ریاست است که بعضی حیوانات با وی شریکند ، همچون شیر و پلنگ.
سوم لذت علم و حکمت و معرفت حق تعالی که این را هیچ جانوری ندارد .امام محمد غزالی
فرق مومن و دنیاطلب:
مومن به فکر و عبرت مشغول بُود و منافق به حرص و اَمَل.
مومن از همه کس نومید بُود مگر از حق تعالی و منافق به همه کس امید دارد مگر حق تعالی.
مومن مال فدای دین کند و منافق دین فدای مال کند.
مومن طاعت همی دارد و همی گرید و منافق معصیت همی کند و همی خندد.
مومن تنهایی و خلوت را دوست دارد و منافق در جمع بودن و ازدحام و شلوغی را.
مومن همی کارد و ترسد که ندرود و منافق نکارد و طمع دارد که بدرود .امام محمد غزالی
ده اصل مهلکات عبارتند از:بخل، کبر، عجب، ریا، حسد، خشم، شهوت(طعام و سخن و... )، دوستی مال و جاه و حرص ده اصل منجیات عبارتند از:توبه، پشیمانی بر گناه، صبر بر بلا، رضا بر قضا، شکر بر نعمت، برابر داشتن خوف و رجا، زهد در دنیا، اخلاص در طاعات، خلق نیکو با مردم و دوستی خدای تعالی امام محمد غزالی

# د روان وضعیت په اړه د اسلامي امارت له ویاند





# ذبیح الله مجاهد صاحب سره

**مرکه کوونکی : أبوعابد**

درنو لوستونکو!

**تاسو په جریان کې یاست چې افغانستان سږ کـال د مهمـو نظامي، سیاسي او نورو تحولاتو شاهد و، په دې اړه مو د مجلې ددې ګڼې لپاره داسلامي امـارت لـه ویانـد ښـاغلي ذبـیح الله مجاهد صاحب سره د زړه خواله وکړل د نوموړي بشپړه مرکه پـه لاندې کرښو کې لوستلای شئ .**

**أبوعابد**

مجاهد صاحب لـه هرڅـه وړانـدې درتـه هرکلـی وایـو کـه مهرباني وکړئ د هیواد دروان نظامي وضـعیت پـه اړه معلومـات راکړئ، د خیبر عملیات جریان لري، ستاسو پـه بـاور سـږ کـال دافغانستان نظامي وضعیت څرنګه و، اوضاع د چا په ګټـه وه او کوم لوري لاسته راوړنې درلودې ؟

**مجاهد**

الحمـدلله وکفـی والصـلوة والسـلام علـی عبـاده الـذین اصطفی اما بعد:

تاسو او لوستونکو ته هم د سلام او احترام سره یوځـای خپلې نیکې هیلې وړانـدې کـوم ،د خیبر عملیـات الحمدلله د پخوانیو ټولو عملیاتو په پرتله خورا له لاسته راوړنو ډک عملیات وو، دغه عملیـات د خپـل تفـاول مطـابق د دښـمن لپاره خورا ځپونکي وو، د مجاهدینو لپـاره لـه نـوی روحیـې برخمن وو، د دې عملیاتو پیل په داسې حال کې وشو چې سږکال مجاهدین د پخوا په نسبت د شـمیر لـه پلـوه هـم ډېر د جهاد میدان ته راووتل تـر دې چـې پـه ډېـرو پسـې وسلې نه رسیدي، د عملیاتو ساحه د هیواد ډېـرو داسـې سیموته هم پراخه شوه چې پخوا مجاهدین هلتـه کـم وو، لکه د هیواد ځینې لري ساحې خصوصا شمال ، د عملیـاتو په اوایلو کې په بدخشـان کـې لـه دښـمن څخـه ولسوالۍ ونیول شې، هلته د لسهاوو غلیمانو د وژلو ترڅنګ لسګونه نـور ژونـدي ونیـول شـول، لـه دښـمن څخـه ډېـره وسـله، مهات، موټر او نور نظامي توکي مجاهدینو ونیول، همداراز سږ کال د پخوا پـه پرتـه د کنـدز پـه ولایـت کـې د خیبر عملیـاتو اثـرات خـورا ښـکاره وو، ډیرمجاهـدین د دښـمن مقابلې تـه راووتـل، ددشـت ارچـي ولسوالی، د چهـاردرې ولسوالی او د امام صاحب ولسوالۍ ډېـرې برخـې ورسره د کندز د مرکز ډېره برخه د دښمن له وجود څخه پاکه شوه، مجاهدینو پـه کـې لـوی لـوی عملیـات وکـړل، پـه لسهاوو

پوستې يې فتحه کړې، له دښمن څخه يې ډېره وسله او مهمات غنيمت کړل، ټانګونه يې ونيول، د لسګونه اربکيانو، پوليسو، عسکرو او استخباراتي کسانو د وژولو ترڅنګ يې ډېر ژوندي ونيول او تر اوسه الحمدلله په ټول کندز کې دمجاهدينو موجوديت ښکاره محسوس ده.

ورسره د د سږکال د عملياتو له برکته، د فارياب، غور، هلمند، ارزګان، کندهار، لوګر، غزني، ننګرهار، نورستان، دايکندي، سرپل او ډېرو نورو ولاياتو کې په دښمن باندې لوی تهاجمي بريدونه وشول چې دښمن يې سخت وارخطا کړ، په سلهاووتنه عسکر، پوليس، استخباراتي کارکونکي او اربکيان يې ووژل شول، ژوندي ونيول شول، وسلې، مهمات، نظامي وسائط او نور توکي د مجاهدينو لاسته ورغلل.

د سږکال له پيله د مجاهدينو لخوا خيبر عمليات ښه تنظيم شوي وو او د دښمن مهم اهداف يې تر بريد لاندې ونيول، څرنګ چې تاسو پوهيږئ سږکال د دښمن لخوا د جعلي انتخاباتو دوه پروسې ترسره شوې او په دواړو کې په دوو ورځو کې د دښمن په وړاندې تر ۲۰۰۰ پورې بريدونه په ټول هيواد کې په هماهنګه توګه ترسره شول چې د مجاهدينو په ډېرقوت يې دلالت کاوه او د دښمن هغه جعلي او نمايشي پروسه يې مختل کړه، دا بيا بيله خبره ده چې دښمن د انتخاباتي پروسې دبريالی ښودلو لپاره زموږ په عملياتو سترګې پټولې.

په دې سربيره ددعوت په ساحه کې هم د مجاهدينو د فعاليت له امله په سلهاوو کسان د دښمن له صف څخه راووتل او بيرته خپل عادي ژوند ته راوګرځيدل، د مساحت په لحاظ د هيواد ښه ډېره برخه د پخوا په نسبت د مجاهدينو د ګرځيدا او ښکاره فعاليت په ساحه بدله شوه، ډېر هيوادوال د اسلامي نظام ترسيورې لاندې له ژوند کولو څخه برخمن شول.

په همدې اساس نو ويلای شو چې سږ کال فتوحات او لاسته راوړنې د مجاهدينو وې، د هيواد ډېره برخه دمجاهدينو د فعاليت تر پوښښ لاندې وه، حتی په کابل کې چې له امنيتي پلوه د دښمن د تمرکز ځای ده او دلته دښمن خپله ټوله انرژی مصرف کړې بيا هم لوی فدايي بريدونه وشول، د دښمن مهم قطارونه تر بريد لاندې ونيول شول، د بهرنيو اشغالګرو ترڅنګ کورنيو مزورو عسکرو او پوليسو هم خاص په کابل کې ډېر تلفات وليدل، لوی لوی انتقالاتی موټر يې د تأکتيکو له مخې له منځه لاړل، مهم کسان يې د مجاهدينو لخوا په چريکي بريدونو کې ووژل شول، او لا هم الحمدلله د کابل په ګډون په ټول هيواد کې د ښمن ځپل جريان لري.

په دې توګه نو ښکاره ويلای شو چې د تعداد په لحاظ نسبتا کم مجاهدين وتوانيدل چې د زرګونو مجهزو بهرنيو اشغالګرانو عسکرو په وړاندې او ورسره د تقريبا نيم ميليون کورنيو مزدورو عسکرو، پوليسو، استخباراتي کارمندانو او اربکيانو په وړاندې ښه ميړانه وجګيړې او په هره ساحه کې دښمن له وارخطايي او لار ورکی سره مخ کړي.

**أبوعابد**

په افغانستان کې سږ کال لوی سياسي تحول راغی، غربي مطبوعاتو د انتخاباتو او ددوی په اصطلاح د واک د سوله ايز انتقال پروسه يوه لويه او رښتيني لاسته راوړنه وبلله ، تاسو دغه جريانات څرنګه تحليلوئ آيا دادغربيانو لپاره لاسته راوړنه که شاتګ يا رسوايي وه ؟

ځرنګ چې تاسو ورته اشاره وکړه، په افغانستان کې د سیاسي تحول په نامه چې کوم بدلون راغی، یا تبلیغات ورته وشول او یا یې په اړه خوشبیني موجودې وي، ټولې سرچپه او برعکس وې.



ــ غربیانو غوښتل وروسته له ډېرو مصارفو، ستړیاوو، تلفاتو او زمولیدو ځخه دا وښیي چې دوی دلته خپلو موخو ته ورسیدل، په اصطلاح یو منتخب نظام یې جوړکړ، د دیموکراسۍ اساس یې کیښود، اوس که له دې هیواد ځخه خپل عسکر هم پرشا کړي او د جګړې یولوریز پای ته رسیدل اعلان کړي نو خپل ملت ته به وایي چې بریالی شول!!؟

خو په عمل کې ټولو افغانانو او نړیوالو ولیدل چې داسې ونه شول، دلته دوی له پخواني نظام ځخه ډېر کمزوری او په معاملو ولاړ نظام جوړ کړ، د انتخاباتو پروسه یې د خلکو د نه ګډون او امنیتي وضعیت له امله هسې هم ناکامه وه، خو غربي رسنیو د تبلیغاتو په مټ هڅه کوله چې پروسه بیا هم بریالي وښیي اود خلکو سترګوته خاروې وشیندي، خبره هلته ښه بربنډه او له تبلیغاتي کنټرول ځخه ووته چې د دوهم ځلي انتخاباتو ځخه وروسته کومه دشرم او خجالت وړ حالت مینځته راغی، کاندیدانو پخپله اعتراف وکړ چې په انتخاباتو کې د ګډون کونکو شمیر په غلطه سره ډېر ښودل شوی، په سلهاوو ټګۍ برګۍ شوې دي چې پخپله پروسه ناکامه ثابتوي .

ــ له ډېرشرم ځخه ډکه خبره لا داوه چې د کرزي د نظام په وجود کې، د محاکمو په موجودیت کې، د په اصطلاح مستقلو کمیسیونونو د فعالیت سره سره بیا هم ورستۍ پریکړه په کاملا غیر دیموکراتیکه توګه د امریکا په سفارت کې وشوه، د وضعیت د کنترول لپاره د امریکا خارجه وزیر جان کیری تلواري سفرونه وکړل، د امریکا خاص استازی او د امریکا دکابل سفیر په منډو تړړو ښه ستړي شول، اخیر یې پروسه رسوا شوه او ځرګنده شوه چې دا د خلکو لخوا کوم انتخاب نه بلکې د امریکایي سفارت انتصاب وه چې د نوم په تغیر او ځو غولونکي خبرو سره په کابل وتپل شو.

د انتخاباتو ناکامو پایلو دا خبره ډېره ښکاره کړه چې په افغانستان کې د پردو لخوا تپل شوي پروسې او سیستمونه بریالی نه دي او نه هم له دې نه هیسته نتیجه ورکولای شي.

ــ دافغانستان مسلمان ملت د اوسنی اداري په غلامی او پردی پالنې وروسته له هغه لا ډېر پوه شول چې د اشرف غني اداري بې له کوم ځنډ او خنډ څخه له امریکا سره تړون لاسلیک کړ او په خپل گمان یې افغانستان د اوږدې زمانې لپاره په امریکا خرڅ کړ.

په دې سره جوته شوه چې د اشرف غني اداره به دپخواني کرزي له رژیم څخه څو برابره امریکایي گټو ته ژمنه وي، د امریکا لخوامخامخ په کرسی کینول او د عبدالله له ټیم سره یې ادغام د امریکا په زور وو، او د راتلونکي افغانستان لپاره د یو ناسالم نظام او گډوډ بې کفایته اداري د رامنځته کیدو سبب به وي.

ــ داشرف غني اداره په لومړی سر کې د امریکایانو لخوا سپکه کړای شوه، ستاسوبه یاد وي چې له امریکا سره د تړون ارزښت او ډېر اهمیت په دې کې وو چې باید دا تړون د امریکا د جمهور رئیس او د کابل د اداري د مشر لخوا لاسلیک شوی وای، خو څرنگه چې امریکایانوته څرگنده وه چې د اشرف غني نظام د دوی لاسپوځي او د دوی په لاس ټاکل شوي نظام ده، نو باید دیو امریکایي ټیټ پوړې مامور په حیث ورته وکتل شي، همدا دلیل وو چې د اشرف غني سره د تړون امضا د امریکا د جمهور رئیس یا اقلا د کابینې د کوم غړي لخوا لاسلیک نه شوبلکې په کابل کې د امریکا د سفیر لخوا امضاء شو چې په دیپلوماتیک لحاظ په داسې مهمو تړونونو امضاء چې په واقعیت کې دوو حکومتونو ترمنځ ترسره کیږي د سفیر کار نه ده.

وروسته د افغانستان له اشغال څخه امریکایانو د کرزي د لومړي سفر په ترڅ کې چې د انتقالي دور په اوایلو کې یي امریکا ته وکړ، هلته د امریکا د سنا جرگه گی له سپکاوي سره مخ شو، هغه داچې دامریکا د مشرانو جرگې په مجلس کې کرزي ته داسې چوکی (کرسی) کینبودل شوي وه چې له ټولو سناتورانو څخه ټیټه وه او کرزي ته یې تلویح کوله چې دی د امریکایانو یو ټیټ پوړی مامور ده.

ــ پورته ټول وضعیت ته په کتو امریکایان په افغانستان کې له هره لحاظه ناکام او رسواشول، نه یې د خپلې دیموکراسی د اصل مطابق نظام جوړ کړای شوای، نه په نظامي ډگر کې دپام وړ بدلون راوستلی شوای، نه د افغان اولس کرکه اونفرت دخپل اشغال په وړاندې راکم یا کابو کړای شوای، په داسې حال کې د افغانستان د جگړې د پای ته رسیدو اعلان صرف د امریکایانو د غولولو لپاره دسیسه ده چې په راتلونکی کې به یي هر امریکایي وگړی هم درک کړای شي.

**أبوعابد**

داشرف غني احمدزي په نوم دکابل د رژیم لپاره نوی مشر انتصاب شو،تاسو د نومووړي شخصیت، مشروعیت او کردار څرنگه ارزوئ که لږ دنومووړي د کردار او حکومت په اړه لوستونکو ته توضیحات ورکړئ ؟

**مجاهد**

اشرف غني احمدزی چون په لبنان کې د امریکا له په یو داسې پوهنتون کې روزل شوی چې هلته همداسې امریکایي عمال تربیه کیدل او دی هم له هغو څخه یو ده، اشرف غني ته په کاذب ډول د متفکر او سیاست پوه لقبونه ورکړل شول او له هیواده بهرپه داسې شرائطو کې اوسیدلی چې د خپل هیواد په درد نه تنها دردمند نه وو بلکې د څه وخت لپاره د کمونستانو په چوپړ کې هم پاتې شوی وو.

اشرف غني په عقیدوي لحاظ هم ستونزې لري، په سیکولرستي مفکوره روز ل شوي او اکثره دیني احکام او اقدار ورته د منلو نه دي.

دمشروعیت په اړه یې دا کفایت کوي چې اشرف غني د امریکایي سفیر لخوا ټاکل شوی او انتصاب شوی ده، دهغو په لاس کې ده او دهغو لخوا به ټول هغه څه ورباندې کیږي چې د امریکا ګټې یې ایجابوي.



سیکولرستانوته حج او نور عبادات چندان اهمیت نه لري او داد عمرې سفر یې هم د انتخاباتي کمپاین برخه وه او دخلکو د تیر ایستلو لپاره ترسره شوه.

ـ وروسته د اشرف غني نورې کړنې هم چې صرف نمایشي- بنه لري غولونکي دي او د ملت د تیر ایستلو هڅه ده، دغه ډول نمایشونه د افغانانو هیڅ اصلی ستونزه نشي علاج کولای، لومړی د دوستم سره د اشرف غني اتحاد او دوستم د خپل لومړی مرستیال په توګه ټاکل پخپله افغانانو ته دا څرګندوي چې د هیواد په راتلونکی کې به بیا هم هغه څو تنه سرې خواره واکمن او برلاسې وي چې مخکې یې هم دا ملت په کراتو زبیښلی او ځورولی ده.

له عبدالله سره د ګډې اداري جوړول بیا هم د دې معنی لري چې هغه غټ مفسدین رشوت خواره، غاصبین، د مخدره توکو تجاران او قاچاقبران چې د کرزي په نظام کې یې د هیواد د بربادۍ او بدنامۍ دنده درلوده هغوی به بیا هم فعال وی او خپلو کړونوته به صرف د نوم او نوعې په تغیر سره ادامه ورکوي.

ـ د اشرف غني کردار هم له هغه لومړی پیل څخه مشکوک او غولونکی ده، ستاسو به یاد وي چې د انتخاباتي کمپاین په سر کې اشرف غني د عمرې په بهانه بیت الله شریفې ته ولاړ، په داسې حال کې چې د ژوند ۶۰کاله یې په ډیره مرفه شکل تیر کړي وو او دحج اداکول وروسته له هغه ورباندې فرض وو چې کله یې د ورتګ وس او توان موندلی وي، داچې اشرف غني په ټول عمر له توان او امکاناتو سره سره، له ډالري معاش سره سره، لبنان او امریکاته تګ راتګ کولای شي، خو فرض حج پریږدې او بیا د انتخاباتو په سر کې عمرې ته ورځي چې د فرضو ځای نشي نیولی دا پخپله په ډاګه کوي چې دغو

د اشرف غني دا هڅې چې ګنې د مفاسدو په وړاندې به مبارزه کوي ، هیڅ عملي اړخ نه لري، ځکه که خبره د ټیټ پوړو مامورینو د مجازات کولو اومخنیوي تر حدودو وي داکار به وکړي ولی ستونزه نشي حل کولای، خو کله که دا ډول مبارزه د دوستم، عبدالله، او نورو غټو رشوت خورو تر کسانو ورسیږي او د اصلاح هڅه یې وشي کوم

چې په پخوانۍ اداره کې هم د فساد اصلي زړي دي، اداره به پاشل کیږي او یا به د اشرف غني مخه نیول کیږي او په اصطلاح اصلاحي پروسه به یې هلته بیا داسې له ناکامۍ سره مخ کیږي لکه څرنګ یې چې د آزادو او عادلانه انتخاباتو پروسه له شرم او ناکامۍ سره مخ شوه او له رقیب لوري سره شرمونکو معاملوته اړ شو.

په دا ډول حالاتو کې اشرف نشي کولای څرنګه چې خلکوته وایي هغسې د هیواد نظام سم او اصلاح کړي.

له بله پلوه امریکایان هم نه غواړي چې په افغانستان کې نظام له مفاسدو پاک شي، ځکه هغو په روان وضعیت کې خپلې ګټې لري، تاسو پوهیږئ چې د کرزي په نظام کې چې څومره فساد شوي وو په هغو کې ډیره ونډه پخپله د امریکایي نظامیانو او قراردیانو وه چې بیرته په امریکا کې د سیاسي کړیو پورې اړوند دي او دهغو غیر قانوني او مافیایي ګټې تأمینوي، د دې لپاره چې اشرف غني ونشي-کړای خپله اداره په واقعي بڼه له مفاسدو پاکه کړي عبدالله غوندي مشهور مفسد یې ورسره په قدرت کې شریک کړ؛ نو کله چې اشرف غني د امریکایانو له ځینو غوښتنو او غیرقانوني اقداماتو په وړاندې په بالقوه ډول خنډ شي، نو په اداره کې دننه به ورته سردرد جوړوي او دنیردې رقیب عبدالله په وسیله به یې اړ کوي چې د امریکایي غوښتنې ومني، په دې ډول به نو د اشرف غني اداره ځینې هغه نمایشي- تخلفونه نشي- کولای چې د کرزي ادارې د خپل واک په وروستیو کې له امریکایي غوښتنو سره کړي وو.

**أبوعابـــد**

داشرف غني احمدزي په مشرۍ حکومت له امریکا سره دامنیتي تړون په نامه پیمان امضاء کړ او په افغانستان کې یې امریکایي ځواکونو پاته کیدل تر لسونورو کلونو تمدید کړل، که ددې تړون په شرعي حیثیت لږ رڼا واچوئ، زیانونه یې په ګوته کړئ او دا ووایاست چې آیا په دې تړون سره امریکایان او ملګري یې خپلو اهدافو ته ورسیږي؟

**مجاهد**

داشرف غني لپاره پخپل ټول کردار کې له ټولو بدتره اقدام دا وو چې له امریکا سره یې تړون لاسلیک کړ، داسې تړونونه د افغان اولس لپاره چې تر ۹۹ سلنه زیات یې مسلمانان دي دمنلو نه دي او په تاریخي لحاظ د اشرف غني او ټول ټیم لپاره یې د بدنامۍ د تور داغ په توګه ثبت شول، دا تړون د ګندمک بدنام تړون او د شوروي اتحاد سره د ببرک کارمل معاملو ته ورته دی چې په خپل وخت کې دهغو نظامونو لخوا د هیواد اړتیا، د هیواد په ګټه او ښه بلل کیدل خو اوس دافغانستان یو ماشوم هم پریکړه کولای شي چې څومره غټه تاریخي تیروتنه او ستر جنایت وو.

ـ په شرعي لحاظ داسې تړون چې کفري مسلح ځواکونو ته د مسلمانانو په خاوره کې د اوسیدو اجازه ورکړل شي مردود دی او قران کریم په صراحت سره داسې تړون ردوي، الله تعالی مسلمانان له کفارو سره له دوستۍ څخه منع کړي،په شریعت کې هیڅ داسې مشروع صورت نشته چې له مخې یې مسلحو کافرو لښکرو ته په اسلامي وطن کې د استقرار اجازه ورکړل شي،کفر مطلقا قبیح او مردود دی او کافرو پوځیانو ته په اسلامي خاورو داوسیدو اجازه نشته ، مسلمان په فردي لحاظ د کافر بادار تر تصرف لاندې نه شي راتلی، نو یو

بشپړ مسلمان ، مجاهد او سرلوړی ملت به څرنګه دکافرانو غلامي قبوله کړي.

معلومه خبره ده چې په افغانستان کې د امریکایي یرغلګرو د اوسیدو په صورت کې د اسلامي نظام دمنځته راتلو، د شرعي حکم د تطبیق، د مسلمان نسل د دیني اصلاح او اسلامي عدالت منځته راتګ محال بریښي،کوم تړون چې د دغسې مفاسدو سبب او وسیله وي هیڅکله مشروع نه شي بلل کیدای او د اچې د مفاسدو وسیله او سبب دی په خپه فاسد بلل کیږي.

ـ ددې تړون په امضا سره په سیاسي لحاظ هم افغانستان ته ستر زیانونه اوړي، په سیاسي لحاظ افغانستان له ناپیلتوب څخه پیلي حالت ته را اړوي چې داسې دریځ د افغانستان غوندې هیواد ده چې د متضادو قطبونو ترمنځ واقع ده ستر اوږد مهاله اقتصادي او امنیتي مشکلات زیږوي.

په افغانستان کې د امریکایانو نظامي شتون، افغانستان د امریکا د سیمیزو غلیمانو، لکه روسیه، چین، ایران او په بالقوه ډول پاکستان په وړاندې د معرکې په میدان بدلوي او دلته به د اوږدې مودې بدبختۍ جریان لري، د بیلا بیلو توجیهاتو په بنسټ به افغانستان دمحرکاتو مرکز په ډول استعمالیږي، که موږ په تاریخي لحاظ هم متوجه شو، کله چې افغانستان لکه د ظاهرشاه دزمان په ډول بې پرې هیواد وو سیاسی ثبات موجود وو د حذف او شخړو مخه بنده وه، اګرکه اقتصادي ستونزې مو لري خو هغه ستونزې د داخلي غفلتونو، تبملیو او د کورنیو عواملو له امله وي نه دبهرني فشار یا ګرایشاتو له وجهي، خو کله چې دکمونستانو په زمانه کې افغانستان دیو جهت پلو ونیو په طبعي ډول د بل جهت لپاره د مداخلو زمنیه سازي وشوه او ددلته داسې جګړه پیل شوه چې تر ننه وروستی ګټونکی نه لري.

اوس یوځل بیا په لوی لاس زموږ هیواد د نورو ملکونو او ښه ده چې ووایو دسیمیزو متضادو قطبونو د تصادم په ډګر بدلیږي او داسې خام سیاست افغانستان خورا اوږد مهاله بې ثباتۍ ته ټیل وهي.

ترټولو مهم خبره داده چې افغاني ذهنیت دې خبرې ته آماده نه ده او نه هم آماده کیدلای شي، چې د دیني ارشاداتو له احکامو سر وغړوي او کفري قواوي په خپل ملک کې ومني، که داسې فکر د کوم بل هیواد په اړه وشي امکان به یي وي، خو د افغانانو په اړه چې په دیني برخه کې خورا ډیر ځله تجربه شوي دي، داسې فکر چې داملت به امریکایي نظامي موجودیت د څوتنو په امضاء سره ومني او غاړه به ورته کیږدي، دا دافغانستان له تاریخ ناخبري او یا تجاهل ده، موږ په دې باوري یو چې که د ا اوس ژوندي افغانان له امریکایانو د



تـړون پـه موضـوع قـانع هـم شي ، پـه راتلـونکي نسـل کې بـه حـتما داسـې ځـيرې راپيـداکيږي چـې دې حالـت ته بـه تغيـر ورکـوي او د امريکـا غلامـي بـه نـه زغمـي، نـو اشرف غني دغه ټول حالت له پامه غورځولی ده.

ــ دا ښکاره حقيقت ده چـې د افغانسـتان غونـدي هيواد چې اولس يې دمرګ ترپولې پورې دينـي مقدسـاتو، احکامو او لارښـونوته ژمـن ده ، دنظـامي زور او ځـواک پـه مټ نه شي ايل کيدی، يو وخت امريکايانو دلته لـه يولکـو ډير ځواکونه درلودل، معاصره مؤثره تکنالوژۍ يي په لاس کې وه، پـه نـړۍ کـې د ۴۹ هيوادونـو نظـامي او اقتصـادي ملاتړ ورسره وو، له هغو ټولـو سره سره، پـه خپلـو اهـدافو کې پـاتې راغلـل، اوس يـې نظـامي جـنرالان هـره ورځ پـه ناکامۍ او تيروتنه اعترافونه کوي، نو اوس به د لسـو زورو عسکرو په موجوديت سره څه وشي کړای؟

هو د ځـان او مزدورانـو پـه وړانـدې بـه لا هـم د ملت حساسيتونه راوپاروي، افغانـان لا ډيـر د جهـاد او مبـارزې ميدان ته راباسي، د جګړې د دوام عوامـل بـه ډيـر کـړي، خو په اخره کې بياهم له ټول قوت سره مـاتې خـوري، کـه سل ځله هم د خپل لاسپوڅو سره تړونونه امضاء کـړي لـه هغـوی سره بـه يوځـای د افغانـانو لخوا ځـپل کيـږي او دا خاوره حتما خپله آزادۍ او استقلال اخلي. ان شاءالله

**ابوعابد**

ستاسـو پـه بـاور بـه لـه امريکـا سره د امضـاء شـوي تـړون د پـام وړ منفـي عواقـب دافغانـانو او افغانسـتان لپاره کوم وي ؟

**مجاهد**

لـه امريکـا سره دامنيتـي تـړون او پـه افغانسـتان دامريکـايي نظـامي اډو اسـتقرار ګـڼ شـمير منفـي عواقـب لري،امريکايـان بـه لـه دې اډو څخـه داسـلامي حرکتونـو ، مجاهـدينو او داسـلامي نظـام دارمـانجنود



ټکولـو او لـه منځـه وړلـو لپـاره اسـتفاده کـوي، پـه افغانسـتان او سـيمه کـې بـه د اسـلامي ويښـتابه او اسلامي فکـر د تقـويې مخنيـوی کـوي او پـه دې برخـه کـې بـه لـه پـوځي، تبليغـاتي، سـياسي ، رواني او استخباراتي جنګ څخه کار اخلي.

د افغـان مـؤمن اولـس د ګمـراه کولـو او دغـربي بي دينـۍ پـه رنـګ د رنګولـو لپـاره بـه هـره نـوع فعاليتونـه کـوي، دغـربي لغړتـوب، بي دينـۍ، ارتـداد، اخـتلاط او نـورو ګمراهيـو د ترويج لپاره غربيـان لـه خپلـو اډو څخـه پراخ کارونه پيـل کـړي او پـه پـای کـې بـه زمـوږ مسلمان نسـل د ګمراهـۍ او دينـۍ لـه چيلـنج سره مخـامخ کـړي .

غربيـان بـه پـه تـړون کـې د ورکـړل شـويو امتيـازاتو او اختيـاراتو نـه پـه اسـتفاده د افغانسـتان د ملي زيرمـو، فرهنګـي ميراثونـو، نايابـه کيميـاوي مـوادو او نـورو ثروتونـو د اسـتخراج او لـوټ تـالان پـراخ کـار پيـل کـړي، امريکايـان بـه د خپـل بـرلاس حضـور نـه پـه

استفاده د افغانستان په ځمکه او هوا حاکم وي، دافغانستان سیاست، اقتصاد ، بهرنۍ پالیسي ، مطبوعات ، معارف او نور بنستونه به ددوی په لاس کې وي او چې څرنګه یې غواړي د خپلو منافعو لپاره به تري استفاده کوي، معلومه خبره ده چې دافغان اوامریکایي اولس ګتې سره په مخامخ تناقض کې دي، افغانان مؤمنان او امریکایان بي دینه یا کافران دي، دوی په فرهنګي، تاریخي، جغرافیوي اوبل هر لحاظ سره پردي دي نو چې دلته امریکایان دخپلو ګټو لپاره هره نوع فعالیت کوي هغه به مخامخ دافغان اولس په زیان وي .

ددوی اډې به د جاسوسانو دتربیه کولو او تشکیل مراکز وي،له همدې ځایه به خپلې جاسوسي طیارې پورته کوي، ډرون بریدونه به کوي نه یوازې په افغانستان بلکې په جنوبي اسیا، منځنۍ اسیا او ایران په حدودو کې به خپل مخالفین په نښه کوي،چې دا به په سیمه کې جهادي او اسلامي حرکتونو ته یو ستر خطر بلل کیږي،امریکایان به له دې اډو څخه دچین، روسیې ،ایران او حتی پاکستان په خلاف د بالقوه ضربتي امکاناتو په حیث استفاده کوي، هغوی به پرې ډاروي او داچې دا اډې دافغانستان په خاوره دي او دافغانستان حکومت ورسره تړون کړی همدا هیوادونه به افغانستان ته د غلیم په سترګه ګوري، له دې اډو څخه به امریکایان تبلیغاتي،جاسوسي،اکمالاتي او نورې ګټې استفادې کوي.

**أبوعابد**

د اشرف غني دحکومت له راتګ سره ځینې نوې او نادرې پیښې مشاهده شوې، د ایکسپریس افغانستان په نوم کابل چاپ انګلیسي ورځپاڼې یوه له ارتداد او انحراف څخه ډکه لیکنه خپره کړه ، چې مؤمن افغانان یې وبوږنول ، له بلې خوا د ارګ د ملي امنیت سلاکار حنیف اتمر د ډیلي پالیسي ګروپ لخوا دائر شوي سیمینار ته په وینا کې وویل چې باید په افغانستان او سیمه کې ټول دیني مدارس وتړل شي.

دغه پیښې د څه علامت دی، او په وړاندې یې د مسلمان ملت مکلفیت څه کیدای شي ؟

**مجاهد**

داشرف غني غوندي د یو سیکولر کس دکابل په ارګ کیښنول چې په فامیلي لحاظ د عیسویت له تور سره مخ دی، پخپله دا معنی لري چې موږ باید له ډیرو داسې سپکونکو حرکاتو سره مخ شو، د اسلام له دین څخه به لاهم ښکاره ارتداد پیل شي او د اشرف غني مینځته راتګ به د عیسوي نړۍ لپاره په افغانستان کې د لاس وهنو او مداخلو زمینه مساعده کړي، څرنګ چې اشرف غني او ټول ټیم یې غواړي په افغانستان کې دسوچه اسلامي فکر ځای سیکولرستي مفکوره ونیسي نو طبعی ده چې د اسلامي اقدارو به په ورځنیزه توګه توهین کیږي، له اسلامي احکامو څخه به ښکاره انکار کیږي او دغرب وروستۍ موخې چې افغانان په کفر اخته کول دي دابه عملي کیږي، د عام حساسیت د مخنیوي لپاره ممکن په دې برخه کې د اشرف غني ګامونه ورو وي

خو د وخت په تیریدا سره به نور هم داسې سترې سترې ګستاخۍ وګورو.

د دې حالت نه د ژغورلو لپاره یواځنۍ لار د دې ملت لا راویښیدل دي، ملت باید پوه شي چې د امریکا د اشغال پروژه له خپلو ټولو دسیسو او حیلو سره ختنی کړو، دا باید څرګنده کړو چې دامسلمان ملت ده، دلته د مرتدینو د فعالیت لپاره هیڅ ګنجایش نشته، د اشرف غني اداره امریکایانو د همداسې کړنو لپاره مینځته راوستې، د اشرف غني ترځنګ نور غربي سیکولرستان لکه پخواني کمونیست او اوسنی سیکولریست اتمر هم د همداسې سترو پروژو د تکمیل او د افغانانو د ګمراهۍ لپاره ګمارل شوي دي، خو په ټولو حالاتو کې موږ باوري یو چې افغان ملت به د داسې اقداماتو مخه نیسي. او ددې حالت د مخنیوي لپاره له مجاهدینو سره هر راز همکاري او مرسته د حل یواځنۍ لاره ده.

**أبوعابد**

او په پای کې که د اسلامي امارت د ویاند په حیث زموږ لوستونکو ته څه ویل غواړئ هیله ده خپل پیغام راسره شریک کړئ؟

**مجاهد**

زه په دې باوري یم چې د اشغال په وړاندې زموږ مبارزه خپل وروستي قوت ته رسیدلې، جهاد د اوسنیو ټولو ستونزو یواځنی حل ده، د دې لپاره چې هیواد مو وژغورل شي، اسلام مو وژغورل شي، د اسلامي ارزښتونو مو نور سپکاوی ونشي، نور مو ملت د ګمراهۍ او کفر خواته دعوت نشي، راتلونکی نسل مو له کفر، ارتداد او ګمراهۍ څخه وژغورل شي، نو لازمه ده چې د خپلو مجاهدینو وروڼو څخه کلک حمایت وکړي، لا هم جهادی بهیر خپل وبولي، لاهم له فرد فرد مجاهد سره همکار ووسي.

مجاهد وروڼه هم باید لا خپلو موخو او اهدافو ته متوجه شي، لا خپلې مبارزې ته زور ورکړي، د جهاد په جریان کې لا متانت وښيي او د دښمن په وړاندې ټولې هغه لارې اختیار کړي چې د جهاد



دقوت او د اهدافو د لاسته راتګ سبب ګرځي.

مشران مو هم باید د مجاهدینو په رهنمایي او رهبرۍ کې لا ډیره توجه وکړي، د مجاهدینو فکري روزنې او اصلاح ته لا ډیره توجه وکړي ترڅو هرڅه ژر د الله تعالی د نصرت سبب وګرځي او د مجاهدینو ګړندیو بریاوو ته زمینه مساعده شي. **ان شاءالله**.

# اهل سنت والجماعت

## (اشاعره ماتریدیه)

نهمه برخه

مفتي شاهد حقاني

دې څېړنه کې به دعلم کلام یا علم عقاید دفن هغه علمبرداران راوسپړو، چې دمعتزله وو داباطیلو پرخلاف یې، داهل سنت والجماعت بیرغ هسک کړی او ددې لویې فتنې دامحاء او له منځه وړلو لپاره یې، په تشریعي اساساتو مبتني شوي منطقي براهین اقامه کړي او دسلفو په منهج یې داهل سنت معتقدات رڼولي دي، (اشاعره او مایریدیه) داسلامي امت هغه منل شوي ټولنې دي، چې دقرآن او سنت په رڼا کې یې، ددین مقدسې ګروهې له نا مقدسو هغو څخه تنقیح کړي او نن هم دخلکو اشکالاتو ته قانع کوونکي ځوابونه شتون لري !

دلته به مونږ دهند د(فخرالمحدثین حضرت مولینا خلیل احمد سهارنپوري رح ) په شهکار تالیف (المهند علی المفند )بانـدې دنـامتو دینـي سـکالر او عـالم (ډاکټرعلامه خالد محمود رح ) دمقدمې ځینې اړین مباحث له اردو ژبې څخه پښتو ته، له لنډې ژباړې سره اقتباس او راتلخیص کړو، او اشاعره وو او ماتریدیه وو ) ته دانتساب ځیني موارد به دموضوع دلا ښه روښنایي په خاطر قلمداد کړو، باید ووایو چې (المهند علی المفند ) دهند (مولینا احمـد رضـان خـان )د(حسـام الحـرمین )پـه نـوم د دیوبند دعلماوو پرخلاف دتکفیري دستاوزیزاتو او دهاغه وخت دحرمینو دعلماوو، د(۲۲ )سوالونود ځوابونو هغه ټولګه یارساله ده، چې ددې علماوو په استازیتوب یې په (۱۳۲۵هـ)کال کې لیکلې او

پایلـه کـې دحرمینـو دعلماوودتاییـد او تصـدیق وړ ګرځیدلې ده.

امـام ابوالحسـن اشعري (۳۳۰هـ)او امـام ابومنصـور ماتریـدي (۳۳۳هــ)رحمهمـا الله تعـالی، داهـل سـنت والجماعـت د عقایـدو علمبـرداران او پـدې هکلـه یـې لـه مخالفینو سره ډیرې مجادلې کړي دي ،دعقایدو په ډګر کې ستره جګړه د اهل سنت والجماعت او معتزله وو ترمنځ پیښه شوي ،معتزله وو دخپلو نظریاتو داثبات لپاره ډیر عقلي دلایل استعمال کړل او د(خبرواحد )دحجتیت څخه یې انکار وکړ، دمعجزاتـو تر شـایې طبعـي اسباب لټول ،اهل سنت خپل عقاید له قرآن اوسنت څخه ثابت کړل ،محدثین او فقهـاء داهـل سـنت پـر نظریـاتي لاره لاړل، اشـاعره او ماتریدیـه ،چې هم پـه عقیـدوي میدان کې اهل سنت دي ،نودمعتزلـه وو پـرخلاف یـې ددوئ دوسـلې څخـه کـار واخسـت، او پـه عقلـي اسـتدلال یې دوئ تـه ځـواب ووایـه ،اوددوئ هـره مسـئله یـې مسـتدله رد کـړه ،ددې پایلـه داشوه، چې معتزله وو دعقل د وژنکیوو سایلو په ملاتړ اهل سنت والجماعت داعتزال په جال کې ونشواى ښېلولای، او اهل سنتو چې دعقل سلیم او نقل صحیح له توافق څخه ځانته کومه سمه لاره انتخاب کړې وه ،داتر ډیره بریده دمتکلمینو دمرستې او هڅو ثمره وه ،ددې نه پس چې دمتکلمینـو پـه لاره اومـنهج (علامـه نسـفي یـا علامـه تفتازاني ) تلل، دا سنتو ته ډیره نږدې وه.

هو !داخبره هم صحیح ده ،چې دعلم حدیث په ځینو حلقاتوکې دمتکلمینو سره ژور نفرت شتون لري ،خوددې حقیقت څخه هم انکار ندی پکار ،چې د(حافظ ابن تیمیه رح) او (حافظ ابن حجر عسقلاني رح )غونډې جبال علم الحدیث(دحدیثو دعلم نامتو ستې )د(اشاعره وواو ماتریدیه وو ) خدمات او منډې تړړې دتل لپاره داهل سنتو په لړلیک او لومړي کتار کې شمیرلې دي.

حافظ ابن تیمیه رح لیکي چې: وکان الاشعری وائمة اصحابه یقولون انهم یحتجون بالعقل لما عرف ثبوته بالسمع فالشرع هوالذی یعتمد علیه فی اصول الدین والعقل عاضد له ومعاون (کتاب العلل والنقل )ژباړه :ابوالحسن اشعري رح اودده شاګردان ،چې دعقاید وپه فن کې دامامت درجې ته رسیدلي دي ،خپله تګلاره داسې بیانوي، چې ،مونږ پرعقل صرف په هغو امورو کې دلیل نیسو ، چې ددې ثبوت لومړی په صحیح نقل سره شوی وي ،همداشریعت دی، چې ددین پر اصولو یې اعتماد شو ی وي او عقل دنقل مرسته کوونکی او ملاتړی دی.

ددې څخه دامعلومیږي چې دامام ابوالحسن اشعري رح او دده دشاګردانو ،دا هڅه دتحسین او قدر وړه ده، چې دوئ ددین اصل ،کتاب او سنت بولي او بیا عقل ،ددې دخدمتګار په توګه کاروي.حافظ ابن تیمیه رح په بل ځای کې لیکلي چې : (وهذامما مدح به الاشعری فانه من بین من فضائح المعتزلة وتناقض أقوالهم وفسادهامالم یبینه غیره لأنه کانه منهم (منهاج السنة ج۳ص۷۱) ژ: په (الابانة )کې اشعري رح وايي چې :زه هغه څه وایم: چې دسنت او حدیث خاوندان یې وايي ،هغه داهم وایي، چې هغه دامام احمد بن حنبل رح په قول فتوی ورکوي ،(مهاج السنة).

ددې نه ښکاري، چې امام اشعري رح او دده شاګردان، عقل دمعتزله وو ،خلاف دیوې وسلې په توګه داسې استعمال کړی، چې دا یې د کتاب او سنت دڅوکیدار بڼه لري ، نه داچې دایوه خپلواک مصدر یا ماخذ وي، اوداهم ضروري ده ،چې دوئ ته دکتاب او سنت په باب پوره معلومات وو ،که نه ،نو څنګه یې کتاب او سنت په دومره اشتهاري بڼه دمعتزله وو خلاف دیوې غښتلې وسلې په توګه وارزوه ،متکلمین چې ځان داهل سنت یوه ډله شماري، اړینه ده، چې په سنت به ژور علم او عبور لري ، لکه په اخرت کې دڅښتن تعالی په رؤیت، چې دامام ابوالحسن الاشعری رح کومه نظریه ده، هغه په ډاګه ښکاره کوي ،چې دوئ په حدیث او سنت باندې، دا استدلال له لارې معتزله وو سره په مجادله کې بوخت دي ،لکه چې (کتاب الایة الاشعری ص۵ )کې لیکي: (خالفوا روایات الصحابة عن النبی صلی الله علیه وسلم فی رؤیة الله تعالی بالأبصار وقدجاءت فی ذلک الروایات من الجهات المختلفات وتواترات بها الآثاروتتابعت بها الاخبار(کتاب الأیة الاشعری ص٥) ژ:معتزله په سترګو دالله جل جلاله دلیدلو دداسې روایاتو مخالفت کوي ، چې هغه له پیغمبر علیه الصلوة والسلام څخه، صحابه کرامو رضی الله عنهم روایت کړی دی ،پدې باب کې له مختلفو جهاتو څخه روایات راغلي دي ،احادیثوکې دتواتر تر پولې پورې رسیدلي دي،اوپدې کې یو په بل پسې اثار په تتابع سره وارد شوي دي.

ددې مذکورعبارت څخه په ډاګه اثارو او احادیثو کې دامام ابوالحسن اشعري رح دپراخه علم اومعلوماتوارزیابي کیږي ،نودې سره دځینو هغو سلفیانو قول رد شو ، چې وایي چې اشاعره یا ماتریدیه په علم حدیث باندې نه پوهیږي ،مقدمه لیکوال(ډاکتر علامه خالدمحمودرح ) په خپله سریزه کې دا خبره داسې تردیدوي چې :اس سے امام ابوالحسن الاشعری رحمه الله تعالی کی اثار اور احادیث کی وسیع علم کا پته چلتا هی ،سوابعض سلفیون کی اس پروپیګنډه مین کوئی جان نهین که اشاعره اور ماتریدیه اهل سنت مین سی نهین هین .معاذالله اهل بدعت مین سی هین !

نوربیا ..........

# د شهید ملا عبدالرحمن اخند ژوند ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

د ۱۴۳۵ هـ ق کال د ذوالقعدة الحرام میاشتې په ۲۸ مه نیټه د فراه ولایت په بکوا ولسوالۍ کې د دښمن په یوه هوایي برید کې د هرات ولایت لپاره د اسلامي امارت عمومي جهادي مسؤل ملا عبدالرحمن آخند له خپلو شپږو تنو نورو ملګرو سره په شهادت ورسید.

دا په همدې کال کې د اسلامي امارت دریم ولایتي مسؤل/ والي و چې دجهاد په تاوده ډګر کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید، تردې وړاندې د کونړ ولایت والي مولوي نورقاسم حیدري او د کندهار ولایت والي ډاکټر عبدالواسع عزام هم په جهادي ډګر کې په شهادت رسیدلي و، په دې لیکنه کې مو د شهید ملا عبدالرحمن آخند ژوند ته ځغلنده کتنه کړې هیله ده چې را سره ویې لولئ.

**شهید ملا عبد الرحمن آخند**

الحاج شهید ملا عبدالرحمن آخند چې په نیکه سره یې شهرت درلود د ملامحمد هاشم زوی د ملامحمد رسول آخند لمسی په قوم پښتون /نورزی په ۱۳۹۷هـ ق کال د فراه ولایت د بکوا ولسوالۍ په چیچه سیمه کې په یوه دینداره او علمدوسته کورنۍ کې زیږیدلی.

د نوموړي پلار دیني عالم و، چې له خورا کشرتوب څخه یې په نوموړي دیني درسونه پیل کړل، ابتدائي دیني زده کړې یې په خپل کور کې له خپل والد صاحب څخه ترسره کړې او بیا د بکوا ولسوالۍ د غازي اباد په سیمه کې د مشهور عالم شیخ الحدیث مولوي محمد حسین صاحب مدرسې ته لاړ، په دې مدرسه کې له ډېره موده درس لوستلو وروسته د هلمند ولایت ته لاړ، د هلمند په نوزاد ولسوالۍ او د پاکستان د بلوچستان ایالت په پنجپای سیمه کې یې په مختلفو مدارسو کې دیني زدکړو ته دوام ورکړو، نوموړې خپله د دیني زده کړو

لړۍ پنځمې درجې ته رسولې وه، چې په افغانستان کې د شر او فساد په خلاف د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو، هغه مهال چې طالبانو کندهار ښار نیولی و، خو دهیواد نورو سیمو ته لا نه و داخل شوي ملا عبدالرحمن آخند د فراه ولایت د تکړه جهادي مشر شهید ملامحمدصادق اغا تر مشرۍ لاندې د طالبانو په اسلامي تحریک کې شامل شو.

**په اسلامي تحریک کې خدمتونه**

د کندهار له نیولو وروسته د طالبانو د اسلامي تحریک عمده جنګي جبهات د کابل او دهرات په استقامتونو جنګي خطوط و، چې همیشه په کې سختې جګړې روانې وې، ملا عبدالرحمن آخند دغه مهال څه وخت د میدان ښار په جنګي کربنه کې خدمت ترسره کړ او وروسته دهرات په استقامت د ګرشک او فراه جنګي کرښو ته لاړ،

نوموړي دګرشک او هرات ترمنځ په سختو جګړو کې چې څو ځله د اسلامي تحریک مجاهدین پرمخ لاړل او بیا را په شا شول په دې ټولو جګړو کې یې شرکت درلود، تردې چې د هرات ولایت په تاریخي فتحه کې هم ګډونوال و.

د هرات له فتحې وروسته چې د بادغیس او فاریاب په حدودو کې د طالبانو دفاعي کرښه وه، شهید محمدصادق اغا همدلته د نظامي قطعې مشرو چې ملا عبدالرحمن اخند هم ورسره د مشر ملګري په حیث وظیفه اجراء کوله، د فاریاب، مزار او د شمال د نورو ولایاتو ترفتحې وروسته چې شهید ملامحمدصادق اغا د فاریاب دوالي په حیث وټاکل شو، د نوموړي د شهادت ترنیټې پورې ملا عبدالرحمن اخند په فاریاب کې دنوموړي دنظامي ملګرو له جملې د یو مشر ملګري په حیث په خدمت بوخت و چې د ملامحمدصادق اغا ترشهادت وروسته څه موده د فاریاب ولایت د سرپرست والي په حیث هم پاتې شوی دی په دې موده کې نوموړی د شمال په مختلفو سیمو کې جهادي کرښو ته هم تللو چې په دې لړ کې د تخار، دره صوف او غور په سیمو کې جهادي خدمت یې دیادونې وړ دی.

په افغانستان د امریکایانو تر یرغل وړاندې نوموړي د هرات ولایت په غوریان ولسوالۍ کې دولسوال په حیث دنده اجراء کوله، کله چې امریکایانو په افغانستان یرغل وکړ نوموړی خپلې سیمې ته راغی او د امریکایي یرغل په خلاف یې په جهادي ترتیباتو لاس پورې کړ.

### د امریکا په خلاف جهاد

د امریکایي یرغل نه وروسته چې د اسلامي امارت مجاهدینو د هیواد له ځینو سیمو عقب نشیني وکړه ملا عبدالرحمن اخند هم خپلې سیمې ته راغی، څه موده وروسته یې په جهادي ترتیباتو لاس پورې کړ، څرنګه چې هغه مهال د جبهه یې عملیاتو امکان لږ و او ترټولو مؤثره وسیله د انفجاراتو په توسط د دښمن له منځه وړل و، ملا عبدالرحمن تر هرڅه وړاندې له نورو ماهرو مجاهدینو څخه د ریموټي بم د جوړولو او استعمال تخنیک زده کړ، وروسته یې په خپله سیمه کې د امریکایي یرغل په دوهم کال عملا په خارجي یرغلګرو بریدونه پیل کړل، دا په فراه ولایت کې لومړني جهادي تحرکات و د ملاعبدالرحمن اخند ورور وایي: نوموړي د امریکایي یرغل په دوهم کال په لومړي ځل دبکوا ولسوالۍ په مربوطاتو کې د کندهار - هرات په لویه لاره دخارجیانو یو کروزینګ موټر په ریموټي بم والوزاوو، له دې وروسته یې په همدې سرک د داخلي عسکرو یو دوه موټر په یوه کمین کې له منځه یووړل او ورپسې یې د ایټالوي یرغلګرو یو موټر په ریموټ کنټرول بم والوزاوو، په دې چاودونو سره په فراه کې په یرغلګرو د بریدونو لړۍ پیل شوه چې وروسته دا ولایت په یوه ګرم جهادي ډګر واوښت.

د یرغل په همدې لومړنیو کلونو کې چې د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د ټولو ولایاتو جهادي تشکیلات جوړ شول، په فراه ولایت کې هم پنځه جهادي محاذونه تشکیل شول چې د بکوا دجهادي محاذ مسؤلیت ملا عبدالرحمن ته وسپارل شو، وروسته چې د محاذونو تشکیلات د ولسوالیو په تشکیلاتو واوښتل او په هره ولسوالۍ کې د مجاهدینو ځانګړې جوړښت رامنځته شو، ملا عبدالرحمن د فراه ولایت د بکوا ولسوالۍ جهادي مسؤل وټاکل شو چې شپږ کاله یې هم همدا دنده په خورا ښه ډول ترسره کړه.

نوموړي شپږ کاله د بکوا ولسوالۍ د مسؤل په حیث دنده ترسره کړه بیا یو کال د فراه ولایت د بالابلوک ولسوالۍ د مسؤل په حیث پاتې شو، له هغه وروسته یې یو کال بیا د بکوا ولسوالۍ د مسؤل په حیث وظیفه ترسره کړه، چې ورپسې د نیمروز ولایت د جهادي مسؤل په حیث وټاکل شو په نیمروز کې یې ۸ میاشتې جهادي خدمت ترسره کړ، او بیا د هرات ولایت د

جهادي مسؤل په حيث وټاکل شو ، په هرات ولايت کې يې ۱۹ مياشتې وظيفه ترسره کړه تردې چې د همدې وظيفې په مهال په شهادت ورسيد.

د يادو وظائفو سره هم مهال نوموړي ډيره موده د فراه دولايتي کميسيون دمشر په حيث هم دنده ترسره کړې دغه راز يې ترڅه وخته د اسلامي امارت د مرکزي نظامي کميسيون غړيتوب هم درلود .

ملا عبدالرحمن اخند چې په فراه ولايت کې يې خورا فعاله ډلګۍ درلوده دده د ډلګۍ ځينو مجاهدينو په نيمروز او هرات کې هم د محلي مسؤلينو په حيث جهادي وظايف سرته رسول ، دنوموړي ترمشرۍ لاندې مجاهدينو په فراه کې خورا زيات عمليات ترسره کړي چې څو بيلګو ته يې په لاندې توګه اشاره کوو.

ـ ، د ۲۰۰۴ م کال په اوړي کې د بکوا ولسوالۍ د بالبالک کاريز په سيمه کې مجاهدينو ددښمن په يوه لوی کتار بريد وکړ چې په نتيجه کې يې ددښمن ۱۸ تنه عسکر ځای په ځای ووژل شول ، شپږ موټر مجاهدينو په غنيمت ونيول او خورا زياتې وسلې او مهمات هم مجاهدينو ته په لاس ورغلل.

ــ دالفتح عملياتو په کال د بکوا ولسوالۍ د اسحاقزو په سيمه کې ددښمن په کاروان په حمله کې ددښمن ۱۴ موټر له منځه لاړل او ګڼ شمير عسکر يې هم ووژل شول.

ــ دالفتح عملياتو په اوږدو کې د نوموړي تر مشرۍ لاندې مجاهدينو يوازې د فراه په بکوا ولسوالۍ کې ددښمن ۱۸۰ ټانګونه په انفجاراتو کې له منځه يوړل چې ددښمن سلګونه عسکر هم په کې ووژل شول.

ـ دالبدر عملياتو په لومړيو کې د بکوا ولسوالۍ د سياواغا په سيمه کې مجاهدينو د امريکايي سيکورټيانو په کاروان بريد وکړ چې په نتيجه کې يې **۵** موټر او **۱۵** عسکر ختم شول ، دسيکورټيانو مشر ژوندی ونيول شو او دجنګ په مهال ددښمن يوه طياره هم راوغورځيده ، دالبدر عملياتو په لړ کې يوه بله کارنامه د ګلستان ولسوالۍ د پيتاوک په سيمه کې ددښمن داکمالاتي کتار له منځه وړل و چې په ترڅ کې يې ددښمن ۲ سرف موټر او ۲۲ اکمالاتي کانتينر له منځه لاړل ، په همدې کال د ګلستان ولسوالۍ دچهارراه په سيمه کې ددښمن داکمالاتي کتار په موټرو چې په يوځای ولاړ و ۱۲ يوځايي انفجارات ترسره شول چې ددښمن کتار يې له منځه يووړ.

ــ د البدر عملياتو په وروستيو کې چې دژمي موسم و ، په امريکايي ساتونکو په بريد کې ددښمن ۱۲ موټر او ۱۸ عسکر له منځه لاړل مجاهدينو ۱۲ ماشيندار ۴ ثقيلان او نور ډير وسائل او مهمات غنيمت کړل.

ـ دالفاروق عملياتو په لړ کې د ملاعبدالرحمن تر مشرۍ لاندې مجاهدينو د ګلستان ولسوالۍ د توت او چهارراه ترمنځ سيمه کې دداخلي ګوډاګيانو په يوه لوی کتار بريد وکړ چې په نتيجه کې يې ددښمن تر شپيتو زيات عسکر مړه او ټپيان شول مجاهدينو ګڼ غنائم هم ونيول او ددښمن قوه يې له منځه يووړه خو له جګړې نه دستنيدو په مهال ددښمن الوتکو بمبار وکړ چې په نتيجه کې يې د دملا عبدالرحمن اخند ۲۲ تنه جهادي ملګري په يوه ځای شهيدان شول.

**شهادت يې**

د شهيد ملاعبدالرحمن اخند کورنۍ يوه جهادي او شهيد پاله کورنۍ ده ، دامريکا ضد جهاد کې د نوموړي د دوو ورونو شهيد عبدالسلام او شهيد عبدالغفار په شمول ددوی د کورنۍ ۱۱ کسان په شهادت رسيدلي دي، نوموړی په خپل جهادي ژوند کې دوه ځله ټپي شوی و ، په دې وروستيو کې دښمن ډير کوښښ کاوو چې نوموړی په بريد کې له منځه يوسي ، دهمدې لپاره يې پخوا هم څو ځله ورباندې چاپې اچولې وې، دغه راز په وروستي ځل چې نوموړی د هرات ولايت څخه په ليدنه کتنه بوخت و ، لومړی ځل په شينډنډ او بيا د هرات په غوريان ولسوالۍ کې ورباندې

امریکایانو چاپه واچوله ، دغوریانو په چاپه کې درې تنه مجاهدین شهیدان شول خو ده ته الله تعالی نجات ورکړ ، له هغه وروسته چې کله خپلې سیمې بکوا ته راغی ، دهمدې ولسوالۍ د دوشنبې په سیمه کې ددښمن د بې پیلوټه طیارې تر برید لاندې راغی چې له شپږو تنو نورو مجاهدینو سره یوځای د شهادت لوړ مقام ته ورسید. انالله وانا الیه راجعون

د نوموړي دشهادت پیښه د مجاهدینو لپاره یوه دردوونکې پیښه وه ، دنوموړي دشهادت په اړه داسلامي امارت ویاند ښاغلي قاري محمد یوسف احمدي په خپل بیان کې وویل: په ډیره خواشینۍ سره مو خبر ترلاسه کړ چې داسلامي امارت یو وتلي او نومیالی قوماندان دهرات ولایت دجهادي چارو مسؤل الحاج ملا عبدالرحمن اخند چې په نیکه سره یې شهرت درلود د اشغالګرو له لوري د الوتکې په هوایي برید کې دڅو نورو ملګرو سره یوځای په شهادت رسیدلی. شهید ملا عبدالرحمن په فراه او هرات ولایتونو کې داشغالګرو ځواکونو او دهغوئ دګوډاګیانو په خلاف له څو کلونو را هیسې په وسلوال جهاد او مبارزه بوخت وو ،نوموړي دخپلو ګړندیو جهادي فعالیتونو او عملیاتو په توسط په سیمه کې د اشغالګرو عسکرو او هغوی دمزدورانو ژوند نا ارامه کړی وو ،همدا لامل وو چې نوموړی ډیر وخت دډارن دښمن تر څار او تعقیب لاندې وو.

اتل شهید الحاج ملا عبدالرحمن چې دجهاد په لار کې یو نه ستړی کیدونکي مبارز، قهرمان مجاهد او په خپله سیمه کې یو پیژندل شوی او بانفوذه جهادي شخصیت وو ، دجهاد په لار کې یې ډیر ستر خدمتونه ترسره کړي او په دې لار کې یې بې ساري قرباني ورکړې.

شهید الحاج ملا عبدالرحمن اخند د اسلامي امارت دحکومت په مهال او همدا راز داشغالګرو ځواکونو په خلاف په اوسني جهاد کې په ډیرو سختو او نامساعدو شرایطو کې د هیواد په مختلفو ولایتونو کې دپام وړ جهادي فعالیتونه او خدمتونه ترسره کړي.

د قهرمان قوماندان الحاج ملا عبدالرحمن اخند شهادت که څه هم یوه دردمنه پیښه او ستره ضایعه ده ، خو دښمن دي په دې نه خوشحاله کیږي چې دنوموړي شهادت به په سیمه کې دنورو مجاهدینو په مورال او جهادي فعالیتونو منفي اغیزه وکړي، د اسلامي امارت مجاهدین له شهادتونو سره اشنا دي، ان شاءالله ډیر ژر به رامنځ ته شوې تشه دنوموړي دسنګر ملګري ډکه کړي.

لکه څنګه چې داسلامي امارت د ویاند په څرګندونو کې ورته اشاره شوې، شهید ملاعبدالرحمن واقعا د هیواد په لویدیځ کې له مطرحو جهادي شخصیتونو څخه و چې په خپلو نه ستړي کیدونکو هڅو یې په همدې حوزه کې یو قوي جهادي صف رامنځته کړ ، نوموړي یوه قوي جهادي ډلګۍ درلوده چې دبالفعله مجاهدینو شمیر یې تر ۹۰۰ تنو زیات و.

نوموړي نه یوازې په فراه ولایت کې دسلګونو مجاهدینو مشري په غاړه درلوده بلکې کله چې په هرات کې مسؤل وټاکل شو هلته یې هم خورا سترې جهادي کارنامې ترسره کړې ، نوموړی به اکثره وخت په جهادي جبهاتو کې و او په خپله یې په جګړو کې برخه اخیسته.

د نوموړي دنږدې ملګرو په استناد شهید ملاعبدالرحمن په خپلو جهادي چارو کې همیشه له علماء کرامو سره مشوره کوله او جهادي چارې یې په ډیر تدبر او جرأت سره پر مخ وړې ، همدا لامل و چې نوموړي په خورا پیچلو شرایطو کې خورا بریالۍ مبارزه وکړه او په پای کې خپل وروستي هدف شهادت ته هم وصل شو.روح دې یې ښار اویاد دې یې تل وي.

# لس بدې خبرې چې د انسو ښو خبرو مخه نیسي

ژباړن: ذبیح الله رحیمزی

۱ :غرور د زده کړې مخه نیسي.

د زده کړې اصلي مخنیوی غرور کوي. تاسې به دا ایراني ضرب المثل اوریدلی وي ((پوښتنه کول عیب نه دی نه پوهېدل عیب دی)) مگر تاسې خپله قضاوت وکړئ چې څو ځل د غرور له امله مو نه دي غوښتي پوښتنه وکړئ. زما په نظر هغه وګړي چې په بېلا بیلو برخو کې د پرمختګ لوړو پوړیو ته رسیدلي هغه وګړي دي چې پر پوښتنه کولو شرمیدلي نه دي.

۲ :تعصب د ابتکار مخه نیسي.

په نړۍ کې له تعصب پرته بل داسې څه نه شته چې د پرمختګ او نوښت مخه دې ونیسي. زموږ له ډېرو شیانو بد راځي او ور څخه کرکه کوو، خو پوهېږو نه چې ولې. که چېرې موږ د ژوند باوریو او چارو ته ځیر شو او پرې فکر وکړو؛ نو کومه ځانګړې فلسفه ورته نه لرو په داسې حال کې چې هره ورځ یې ترسره کوو. هرڅوک چې د تعصب له امله د ژوند نه جبرانېدونکي زیانونه کشف او پیدا کړي؛ نو پر مخ به یې نوې لارې پرانېستل شي او نړۍ به له یوې ځېرې سره وګوري.

۳ :لږ فعالیت مو د پرمختګ مخه نیسي.

مشک هغه دي چې خپله بوی ورکړي نه چې پلورونکی یې درته وو ایي. که چېرې ټوله نړۍ ووایي چې تاسې با استعداده انسان یاست؛ خو ترڅو مو چې افکار او عقاید په ذهن کې پاتې وي؛ نشئ کولی پرمختګ وکړئ. نور وګړي به ستاسې ځېرې او سلوک ته کوم ارزښت ور نه کړي، یواځې کله مو چې شونډې د خبرو لپاره وښوځولې کولی شئ پرمختګ وکړئ.

۴ :ویره د دریدلو مخه نیسي.

ویره په اصل کې د ثابت قدمۍ او په خپلو باوریو بندیز دی. د نورو د قضاوت ویره، د نورو له خوا د رد د ویرې او د نه بریالیتوب ویره د دې لامل کیږي، چې هغه څه چې تاسې یې په ښه ترسراوې هم باوري یاست؛ خو له کولو به یې لاس په سر شئ. ۵ :خیال او خوب د رښتینولۍ مخه نیسي.

بې خیاله اوبې خوبه انسان د زغمولو وړ نه دی که څه هم د ځان او هم د نور پر وړاندې وي. مګر په خیالونو کې ژوند د دې لامل ګرځي څو مونږ په غیر رښتیني نړۍ کې ژوند وکړو او کله چې د غفلت له خوبه پاڅیږو نو هغه وخت به ډېر ناوخته وي.

۶ :د نورو بد غوښتل ستاسې خوښي له منځه وړي.

بد بینه انسان یواځې خپله نه، بلکې د خپلو خپلوانو ژوند هم تریخوي. دا ډول وګړي په ښکلو ماښیو او ښکلو کورونو د پرېښودو په تکل وي. باور وکړئ دا ژوند د هېڅا لپاره د خپل ځان په ډول ستونزمن نه وي. تاسې کولی شئ له هغوی پرهیز وکړئ، مګر خپله په هېڅ صورت نه شي کولی له خپل ځانه تېښته وکړي.

۷ :ځان غوښتنه مو له ټولنې لرې کوي.

د انسان ژوند له نورو سره اړیکه لري. نو دې امله مونږ مجبور یو له نورو سره اړیکې وساتو. مګر هېڅوک له نورو وګړو سره دناستې پاستې خوښوونکې نه دي او نه به اوسي.

۸ :شکایت د کوښښ مخنیوی کوي.

هغوی چې تل دمقصر په لټه او له نورو شکایت کوي؛ نو ده عملاً هڅو ته شا کړې ځکه دی د مقصر په لټه دی! نو د دې ساده ګۍ له امله خپل ژوند مه خرابوئ.

۹ :ځان لوړ ګڼل د محبوبیت مخنیوی کوي.

ټول انسانان خوښوي؛ څو د نورو په نظر کې ښه راشي، مګر کله چې د تل لپاره ځان قدرمتمند او ښه ښایو ټول له ځانه زړه توري کوو او له خپل ځانه یې تېښتې ته مجبور و.

۱۰ :عادت کېدل د بدلون مخه نیسي. عادت د بدلون مخه نیسي او ددې لامل ګرځي؛ څو کلونه، کلونه په یو زمان، یو موقعیت او ځای کې پاتې شو.

# د قلم، لیکوالي او کتاب اهمیت

ملا خبیر احمد مجاهد

دقلم اوکتابت دعظمت او ارزښت لپاره به همدا مقام اوتوري کافي وي چې الله تعالی په خپلو ړومبینو ایتونو کې دعلق په سورت کې د قلم شان او شوکت په (الذی علم بالقلم) سره بیانوي یعني قلم دعلم او تعلیم مصدر او منشا بولي،

دغه راز الله تعالی په عظیم الشان قران کې یو ځانګړی سورت دقلم په نامه نوموي او په هغه سربیره په قلم او په هغه څه چې قلم یې لیکي سوګند یادوي چې (ن ، والقلم ومایسطرون)

الله تعالی په قلم باندې قسم کوي ، په ژبې یې نکوي ، په داسې حال کې چې ژبه له قلم څخه مقدمه ده ، یعني ژبه اصل ده او قلم یې فرع ، خو باریکي داده چې اثار دژبې دقلم په واسطه پایښت او دوام پیدا کوي ، کچیري قلم او کتابت نه واي دغه دومره لوېي زخیري او علمي اثار به ترمونږ پوري څنګه رارسیدلي واي ، او له هغه پرته به مونږ په څه ډول دخپلو اسلافو ،فقهاوو او صالحینو له خدمتونو ، لاربښوونو او کارنامو څخه اګاه او دیني ربط به مو سره محکم پاتي شوای وی.

داسلام له مقدس دین څخه وړاندې دعربو ، علمي اوفرهنګي سرمایه او احاطه په څو جاهلي سرودونو کې وه ، چې هغه هم دښځو بربنډي ستاینې ، دخپلو اجدادو بې ځایه مدحې او ددښمنانو هجوي وي.

ابن خلدون وایي له اسلام وړاندې دټولو عربو چې له لیک سره اشنا وو شمیر ۱۵ یا ۱۷ تنو ته رسیده

خود حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په بعثت سره په عربو کې دلیک لوست او کتاب بنیاد کیښودل شو او هغه په خپل ژوند مبارک صحابه کرامو ته امر وکړ چې کله ایتونه نازلیږي ، هغه سره جمع او تدوین کړی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د قرانکریم دایتونو (وحي) دنزول لپاره خاص کاتبان درلودل ، او کاتبان په هغه وخت کې هغه کسان انتخابیدل چې په ذکاوت ، امانت داری او خپل فن کې چې هغه لیکل وو ساری به یې نه درلود.

ابن خلدون او نورمورخین وایي چې درسول الله خاص کاتبان ټول دیرشو او ځلویښو ترمنځ وو ، چې په مکه کې یې مشهور کاتبان حضرت أبو بکر الصدیق، وعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عَلِيَّ بْنَ أَبَی طَالِبٍ ، وعُثْمَانُ بْنُ عَفَّـانَ ،عَلِيّ بْـنَ أَبَى طَالِـبٍ ، و خَـالِدَ بْـنَ سَعِيدِ ، و عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ، والأَرْقَـمُ بْـنُ أَبِي الأَرْقَـمِ ، وجَعْفَـرَ بْـنَ أَبِي طَالِبٍ،والزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ، مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي سُـفْيَانَ،خَالِدُ بْـنُ الْوَلِيـدِ او نوروو کان یکتب

کله چې حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مدیني منوري ته هجرت وکړ ، هلته بیا أبو أیوب الأنصاری، خَـالِدَ بْـنَ

زیـدٍ، أُبيُ بـنُ كعـبٍ ، وزیـدُ بـنُ ثابـتٍ، وعبـدُ اللهِ بـنُ رواحـةَ، و معاذُ بنُ جبلٍ اونورصحابه کرام زیات شول.

پـه مدینـه منـوره کـې دهربرخـي لپـاره خـاص کسـان دکتابت لپاره معلوم شوي و ، حضرت علي رض ، حضرت عثمان بن عفان رض او حضرت زَیْـدُ بْـنُ ثَابِتٍ رض اوأُبَيُّ بْـنُ كَعْـبٍ رض بـه وحی لیکلـه ، حضرت علی رض بـه پـه وحی لیکلوسربیره ، له کفارو ، دولتونو او اقوامو سره د رسول الله معاهدي هم لیکلي ، المغیرةُ بـنُ شعبة بـه دخلکو حوایج اوعرایض لیکل ، غنایم به مُعَيْقِيبُ بْنُ أَبِي فَاطِمَةَ الدَّوْسِيُّ لیکل حضرت الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ بـه دصدقاتو مالونه لیکل او کـه بـه پـه دغو کاتبانو کې کوم یو نـه وو نو دهغـه دنده به حنظلـه بـن الربیع ترسره کوله.

خو پـه دغـو ټولـو کاتبـانو کې مشـهور اوزیـات مـاهر حضـرت زیـدبن ثابـت یادشـوی ، لـه حضـرت بـراء څخـه پـه صحیح حدیث کې ثابته شوي وایي چې کله دسورت نسادغه ایت شریف (اعوذبالله من الشیطان الرجیم

لا يَسْــتَوِي الْقَاعِــدُونَ مِــنَ الْمُــؤْمِنِينَ غَــيْرُ أُولِي الضَّرَــرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فَضَّـلَ اللَّهُ الْمُجَاهِـدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً نـازل شو ، حضرت رسو ل اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې زید ماتـه راوغواړی اوورتـه ووایـی چې لـوح اودوات یعنـي دهغـه وخـت قلـم او کاغذ هم راوړه اوولیکه د ایت کریمه دا ټوټه چې: لايَسْـتَوِي الْقَاعِدُونَ"

دحضرت رسول اکرم ص له رحلت ورسته دهمدغه شرف لـه وجي چې حضـرت زیـد رض درلـود داسـلام اول خلیفـه حضرت ابوبکرصدیق رض هغه ته امروکړ چې ته درسول الله دوحـی کاتـب وي اوهـم ځـوان ، عاقـل اومـاهر کـس یـې نودقرانکریم دتدوین او جمع کولو کار ته سرته ورسوه.

حضرت ابن عبـاس رض فرمـایي: رسـول اکـرم صلی الله علیه وسلم، دبدرپه جنګ کې یوشمیرنیول شوي اسیران پـه دي بـدل کـې چـې هغـوی دانصـارو اولادونوتـه کتابـت وروښـودلو ازاد کـړل ، چـې داپـه خپلـه دکتابـت اهمیـت ، ارزښت اوضرورت په ډاګه کوي.

حضرت ابوهریره رض پـه خپلـه فرمـایي چې پـه صحابه وو کې لـه ماڅخـه زیـات روایتونـه چاندي کړي ، ځکـه مابـل شـغل نـه درلـود ، شـپه ورځ بـه درسـول الله پـه خـدمت کـې حاضـروم ، ولـي هغـه لـه ځـان څخـه پـه دغـه عظیم کـارکې حضرت عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو ، وړاندي بولي اووایي چې هغـه بـه درسول الله هرقول اوحدیث لیکـه او مابـه نـه لیکـه: قـال أَبَـا هُرَيْرَةَ مَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَـدٌ أَكْـثَرَ حَـدِيثًا عَنْهُ مِنِّي إِلَّا مَا كَانَ مِنْ عَبْـدِ اللَّهِ بْـنِ عَمْـرٍو فَإِنَّـهُ كَانَ يَكْـتُـبُ وَلَا أَكْتُبُ.

حضرت ابوبکرصدیق رض ، پـه خپـل دورخلافت کې حضـرت عثمـان بـن عفـان رض اوزیـدبن ثابت رض دخلافت دخاصو کاتبانو په توګه غوره کړي وو ، حضرت عمرفـاروق رض زیـدبن ثابـت اوعبـد الله بـن خلـف تـاکلي وو ، حضـرت عثمان رض ، مروان بن حکم اوحضرت علی رض عبد الله بـن رافـع اوسـعدبن نجـران دخلافـت دفرامینـو اونورومهمـو امورو دلیکلو اوثبت لپاره ګمارلي وو.

نومعلومـه شـوه چـې قلـم ، دعلومـو اوفنونـو حـافظ ، دافکارو پاسدار ، دعلماوو اوپوهانو ترمنځ دوصل اوربط حلقه ، دمخکینیو ، اوراتلونکو ترمنځ دارتباط پـل دی ، قلم هغه انسانان چې دزمان اومکان له وجې سره جدا اولیري دی ، هغوی سره پیونده وي داسې یې سره یوځـای کـوي ، تـه بـه وایي ټول مـولفین اولیکـوال پـه یـوه لویـه کتابخانـه کـې سره راټول دي.

: ابن عربي چې اندلس یومشهورعارف ، مولف اوعـالم وو اوپـه **۵۲۰** هـج کـې هلتـه پیداشـوی وایـي ( العلـم صـید والکتابة قید . وإذا ضاع القید ذهب الصید (علم بیش قیمته ښـکاردی، اوکتابـت یـې قفـس دی، کـه چیـري قفـس مـات اوخلاص شو ، نو ښکار هم له لاسه وځي اوالوزي.

ځيني علما وايي: أَلْبَيانُ بَيانانْ: بَيانُ اللِّسانِ، وَ بَيانُ الْبَنـانِ وَ بَيانُ اللِّسانِ تَدْرُسُهُ الاْعْوامُ، وَ بَيانُ الاْقْلامِ بـاق عَلى مَـرِّ الاْيّـامِ! يعنـي بيـان دوه قسمه ده يـو دژبـي اوبـل دقلم ، دژبـي بيـان دوخت اوزماني په تللو زړيږي اوله منځه ځي ، خو دقلم بيـان ترابده باقي پاته کيږي.

ابن بواب ،چې په ۴۱۳ هـ کې په بغداد کې پيدا شوی اودخپل وخت نامتوخطاط اومتصوف وو وايي: صُورَةُ الْخَطِّ فِي الابْصَارِ سَوَادٌ، وَ فِي الْبَصَائِرِ بَيَاضٌ. دخط ظاهري شکل اورنګ دسـرپه سـترګو تـو رښـکاري ، خـو دبصـيرت اومعنويـت سترګو ته سپين ځليږي.

همداډول نوموړی وايي: اَلْيَدُ الَّتِي لاَتَكْتُبُ رِجْلٌ. هغه لاس چې ليکل نشي کولای هغه پښه بلل کيږي.

ابن مقنع وايي: دژبي انحصار تنهاپه حاضروخلکو پوري وي ، خو دقلم فايده اوثمره په حاضرو اوغـايبو دواړو باندي وي.

**دکتاب ارزښت :**

په دې دنياکې نيک ملګری اوجليس ، هغه کتاب دی چې دهغـه پـه صـحبت اوملګرتيا سره سړی لـه منهيـاتو ، ګمراهيواونـاروااوو څخـه پـه امـن کـې پـاتې شـي اودخير،ښيګڼو ، معرفـت سرچينه وګرځـي ، نودغـه رنګـه ملګرتيااواصلاح له شک پرته چې دالله تعالی په نازل شوي کتـاب ( قرانکريم ) اولـه هغه راورسته داحاديثو ، فقهـاوو اومجتهدينوپـه کتـابونو اوتاليفـاتوکې ده چې دامت پـاک زړو ، اوله الله نه ويريـدونکو سلفو صـالحينواوامامانو ده ، تدوين اوترمونږ رارسولي دي. ، دغه ډول ټول هغـه کتابونـه اوعلمـي اثـار دبشـريت دنجـات اوخيرپـه نيـت اودټـولني دمصـالحو اوضـرورياتوپه مبناليکـل شـوي اوټـولنيز فهـم اودرک لري اوله اسلامي مزاياوو سره ټکر ونلري ، اسلام يې مطالعه او استفاده بې ارزښته نه بولي .

علامه ،جاحظ چې دعربي ادب مشهور امام دی اوپه ۱۵۹هج کې په بصره کې پيدا شوي وايي: کتاب هغه ملګری اوصديق دی چې تايواځې نه پريږدي ، يعني ستاپه تنهـايي کې هم ملګری دی ، کتـاب هيڅکله تـاحقيراوکم نه راولي ، په دې معنـاچې پـه ټولنـه کې دې پـه خپلې مطـالعي لوړوي اوپه ذهن اوفکرکې دپوهي اوذهانت خزاني درپـه ځـای کوي ، کتـاب تاتـه پـه ټولنـه کـې داجتماعيت اومعقوليـت درس درکـوي ، دخلکوپـه منـځ کـې دې دمعلـم اواسـتاددرجې تـه رسوي اودفيض اوخيرسرچينه دې ګرځوي.

حضـرت عبـد الله بـن مبـارک رحمـه الله ، چـې زمـونږ اوتاسي دمذهب ، لوی مجتهد ، فقيه اومجاهددی اوپـه ۱۸۱ هج کې تيرشوی په يوه مکتبه کې ناست و ، چاورتـه وويـل چې اې عبدالله ته ولې له مونږ سره نه کيني ، تاچې هروخت مونږ وينو نوپه مکتبه کې وې اويادې کتاب پـه لاس کې وي ،مبارک ورته وويل چې ولې تاسې نه خوښوي چې زه هروخت دحضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم لـه اصحابو کرامو سـره جلـيس اوپـه صـحبت کـې ووسـم ، ځکـه زه داحـاديثو اوفقهاوو کتابونه اواقوال مطالعه کوم اودابعينـه لـه هغـوی سره دمجلس او صحبت معنااواجر لري.

همدغه ډول حضرت عبدالله بن مبارک فرمايي: زه چې کله دکوم کس ليک ، کتاب اوتاليف وګورم ، (که څه هم هغه مامخـامخ نـه وي ليـدلي) ، خـو ماتـه دهغـه دعقـل اوپـوهي اندازه رامعلوميږي

عبـد الله بـن مقفـع: چې پـه دويمـه هجـري پيـړی کـې پـه بصره کې تيرشوی اودعربي ادب نامتوعالم بلل شوی وايي: مَنْ صَنَّفَ كِتَابًا فَقَدْ اسْتَهْدَفَ فَإِنْ أَحْسَنَ فَقَدْ اسْتَعْطَفَ ، وَإِنْ أَسَاءَ فَقَدْ اسْتَقْذَفَ

يعني يوکس که تصنيف وکړ، هغه له مدح اوذم سره مخ شـو ، کـه چيـرې يـې تصـنيف ، معيـاري اوپـه دينـي اصـولواوعلمي تـوازن برابـر وو نـو دمـدح اوغـوره ګڼـه اخيستنې وړ وګرځيد اوکه چيري تصنيف ، ناقص اودټولني

له روح او ديني غوښتنو سره برابر نه وو ، نو هغه بيا د خلکو له نفرت ، شتم او دبدو تبليغاتو هدف او نښه ګرځي.

ځکه په کتاب کې ډېر وخت مولفين هغه څه درج وي چې په خولې يې دويلو جرأات او ملکه نلري ،او زيات داسې هم وي چې دکتاب او مسايلو دراجمع کولو او ليکلو لپاره هغوی فارغ وخت او کافي خلوت ته اړتيالري ، يعني کوښښ دا کوي چې له خلکو کناره او په تنهايي کې ووسي ، نو دغسي هستيو دبصيرت او علمي فهم کچه ترهغو نه معلوميږي چې کوم اثراو تاليف يې طبع او دخلکو ګوتو ته ورنشي.

همدارنګه ، امام سخاوي رحمه الله چې په ۸۳۱ هج کې په مصر کې تيرشوی او دخپل وخت لوی مورخ ، محدث او مفسر وو او يې شميره بيش قيمته کتابونه يې ليکلي وايي زه چې هر کله وغواړم ترخو داسلافو او مجتهدينو ، قدر او قيمت او علمي نبوغ ځانته معلومه کړم او يا په بل عبارت له هغوی سره معنوي ربط او الفت پيدا کړم ، نوزر يې دکوم تاليف او کتاب په لټه کې شم ، دکتاب له مطالعي او لوستولو ورسته زما ورسره قوي او نه شليدونکی تړاو او قرب جوړشي ،او ديوه مرشد او مقتدا په توګه نور زما اصلاح او تذکيه کوي.

همدارنګه يو شمير علما وايي: اَلْكُتُبُ بَسَاتِينُ الْعُقَلاَءِ.لکه چې دعام و خلکو لپاره په ځمکه کې دګلونو او ميوو دارو بوټو اوونو کروندي ډول ډول زړه راښکونکي باغونه ښکاري ، دعالمانو ، پوهانو او دهغو لپاره چې له کتاب سره مينه او محبت لري ، دکتاب پاڼي او بابونه يې باغچي او رنګارنګ باغونه وي او روح يې ورسره خوشحاله وي.

له شک پرته چې په هاغه اندازه چې له کتاب څخه کولای شو نيکه استفاده وکړو ، کچيري ديوه کتاب مولف او عمق ته يې متوجه نشو ، نو ممکن افتونو او خطرونو سره موهم لاس او ګريوان کړي ، ځکه داسلام ، دښمنان که له يوې خوا زمونږ ددين ، عقيدي او وحدت لپاره سياسي ، پوځي او ډول ډول حربي او دسيسي جوړوي ، دکتاب او کتابت په زريعه هم سختي هلې ځلې کوي ترڅو زمونږ دټولني نظم ، نسق او معتقدات تخريب او نوی نسل دبې ديني او ګمراهی په کندي کې لاهو کړي ، چې اوس يې مونږ عملا په ګران هيواد افغانستان کې وينو چې استعمار يا په خپل لاس او يا هم دځينو اسلام نما ځيرو په توسط په علمي او فرهنګي ميدان کې ځو مره منحرف تاليفات دبشري حقوقو ، مذهبي ازاديو اوددوی په ژبه دمعتدل اسلام په نامه نشر او توزيع کړل. نو مطلب دا چې دکتاب نامه او دکتاب په شکل کې غليمان هڅه کوي ترڅو واحد ملت سره په تفرق او اختلافونو کې واچوي او داسلامي شعايرو په وړاندې په خاصه توګه ځوانان په بې تفاوتی کې وغورځوي.نو مسؤلي اداري او علمي ټولني دي دغه کار ته سخت متوجه ووسي او دهرنوی تاليف او کتاب چې نشريږي په غور يې ولولي او خلک دي له مثبتو او منفي اغراضو او محتويات څخه اګاه وساتي

**تحقيقات :**

که څه هم اوس دنيا ترقي کړي دقلم او کاغذ په ځای بريښنايي اسباب او ذرايع رامنځته شوي لکه کمپوټر ، انټر نيټ خو ورستيو تحقيقاتو په ډاګه کړي چې دقلم او کاغذ کارونه او مطالعه دبرښنايي وسايلو په پرتله دانسان مهارت، حافظي او استعداد ته زيات ګټه لري ،

غربي سرچيني وايي، په قلم او کاغذ سره دمطلب ليکل ذهن ته ژر لويږي اوژر ياديږي ، يعني په قلم ديو څه ليکل دا په اصل کې دکليدي کلماتو او مهمو تعبيراتو خلاصه جوړيږي ، کله چې يو څه په قلم دکاغذ په مخ وليکل شي دانسان په مغز کې ورته يو مرکز او خزانه پرانيستل کيږي ، او هلته تقرر پيدا کوي.

په ۲۰۱۰ کال دلندن داکسفورډ پوهنتون په یوه تحقیق راغلي ، چې مونږ په کمکیانو داخیړنه ترسره کړي ، چې کله هغوی ته وویل شي چې داجمله ولیکي ،دماشومانو ذهن ته دهغې جملي په نسبت چې ورته وویل شي چې داجمله یاده کړي،ژر یې ماغزو اوحافظي ته ولیږي، ځکه دلیکلو په زریعه دمغز هغه برخه چې په مټ یې یوشی زده کیږي اواستقرار پیدا کوي ، ژراوبهتر خلاصیږي.

په ۲۰۰۹کې دامریکایوه پوهنتون په یوه خیړنه کې ثابته کړې وه چې که یوڅوک کوم تحقیق اولیکنه وړاندې تردې چې اول یې په قلم اوکاغذ ولیکي په کمپیوټرېې ولیکي علمي مستوا یې کمزوري اوجمله بندي یې منسجمي نه وي.

څیړنه وایي چې په قلم لیکل دکمپیوټر په نسبت ماغزه ځوان اوحافظه روغه ساتي ،اوحتی دمغز لپاره یوډول ورزش هم بلل شوی.

**دقلم توصیی:**

ـــ دلیکلو په وخت په دې باور اوسه چې ستامخاطب اولوستوال ، منتقد ، شکاک ، زیرک اوستاهرې کرښي ته دنقد په سترګه ګوري

ـ دلیکني مهم ټکي اواساسي مطلب کې باید عجله ونکړې اونه هم له کومي مقدمي پرته مقصود ته داخل شي اومقدمه دې هم باید دومره اوږده او طویله نه وي چې اصل مقصود ترشعاع لاندې راولي.

ـ کوښښ وکړه چې دلیکني اوکتاب لیکلو پروخت ځان بې طرفه کسه ثابت کړي ، یعني له تعصب ، تکلف څخه باید استفاده ونکړې ، جبهه ګیري درنه صادره نشي اوتونده لهجه ونکاروې چې بیا لوستونکی درباندې بې باوره کیږي.

ـ دخپلې لیکني اوکتاب ، په عنوانو اوفصلونو کې په خپلې تجربې اومهارت اکتفامکوه ، بلکې له بل ماهر اوعالم سره هم پرې مشوره شریکه کوه.

ـ همیشه داسې فکروکړه چې ستالوستونکی بې حوصلي اومنفی ګرا کس دی ، نو مغلقي اومبهمي جملي چې اذهان خسته کوي مه راوړه ، بلکې لوستونکو ته سهولت وروبښه.

ـ داسې لیکنه کوه لکه چې له چا سره په خبرو اوسوال جواب کې یې ، نه دخطبي اورسمي ویناپه حال کې.

ـ دلیکني یو حسن دادی چې په جملو کې خواږه الفاظ ، راښه تعبیرات اوغیرې تکراري توري راوړل شي.

ـ له لوستونکو سره صمیمي برخورد کوه ، په دې معناکه دیوې موضوع عمق اوتل ته نه وي رسیدلی ، هسي یې سر مه وړدوه ، په جرات ورته ولیکه چې په دې موضوع کې زما معلومات اوفهم همداوو ، که چیري غواړی نور معلومات حاصل کړي ، دغو اوهغو مراجعوته مخه اولټه پیل کړه.

ـ په دې ټکي باید عقیده ولرې چې که ستا ذهن ته کوم مفهوم لاره پیدا کړي ، هغه ددې معنا نلري چې نوموړی مفهوم نور تعبیرات اومعناوې نلري ، بلکې کیدای شي یو تعبیر سلګونه نور تعبیرونه او ماناوې هم ولري.

سرچیني: ۱ طریق الاسلام ( العلم ، الدعوه ، والمعرفه )۲ فضل الکتاب علی کثیر من الأصحاب ۳ حفیدة الصحابة (٤ ، بخاری، باب فضل الکتابت ٥ تقیید العلم، للخطیب البغدادي ص٦ الحاکم في کتاب العلم، باب قیدوا العلم بالکتاب ۱۱ ۱۰٦ ۷ ، تاریخ ابن خلدون ۸ بخاری، باب فضل الکتابت ۹ فتحیة النبراوي: تاریخ النظم والحضارة الإسلامیة ص۹۹.، بیلابیل عربي ویب پاڼي اوعلمي مصادر.

# امریــکایي اډې،

# او قراردادیان!

نسیم ـ لمر

دالله تعالی ، کارونو او حکمتونوته ګوره ، پوره ۱۲ کاله ، امریکایانواودناټو ایتلاف ، افغانستان ته دخپلې جنګـــي تکنـــالوژی ، فـــوځي تجهیزاتـــواوډول ډول لوژستیکي توکوباندې بار په زرهاوو لاری افغانستان ته رادننه کړي ، هغه چې دهواله لارې به یې څومره اسباب اووسایل راوړي وي ، دقیقه اندازه یې نده څرګنده ، همدغه ډول یې دافغانستان په هرولایت کې داسې مستحکم مرکزونه اوکمپاینونه په داخلي اوخــارجي قراردادیـانوودان اوجـوړ کړل ، چې ، هیڅـا ددې فکر نـه کـاوه چې خـارجي قـواوې دې پـه سوونو میلونو ډالروودان شوي کمپاینونه بیرته ویجاړ اوله منځه یوسي .

هغوشــر کتونواوداخلي قراردادیـانوچې دخــارجي قواوو ، کمپاینونه یې په ټیکونیـول اودودانولوچاري به یې هغوی ترسره کولې ، بې خرته ډالرو دومره مـدهوش اوبې پرواکړي وو، چې دمرګ کومي ته یې ځانونه ورکـول ، خـو دیتـه تیارنـه وو چې لـه قـرارداد څخـه ورسته اوبایې هغه بې ضمیره ګټه له لاسه ولاړه شي .

ځکـه مجاهـدینو پـه مسلسـل ډول ، دامریکــایي کمپــاینونو، داخلي قراردادیانوتـه جدي اخطارونـه هـم ورکول اوډیرئ یې پکې وویشتل شول اویـاونیول شول ، خوبیایې هم ، دډالرودترلاسه کولوپـه خاطر داسلام اوهیواد دښمني ته ملاتړله ، ۱۲ کاله یې له هغوی سره ګډکاروکړ اودخارجیانوهرضـرورت اواړتیاتــه بـه یې سیني ډبولي اوتر کمپاین پورې به هرڅه وررسول .

ولې اوس ، لکه څنګه چې الله تعالی ، امریکایـان اوخارجي لښکري ، له رسوایي اوشکست سره مخ کړي او هـره ورځ لـه خپلـو کمپـاینونو څخـه کـډې بـاروي اوبایې تخریبوي ، ورسره دهغو شرکتونواوقراردادیانو حالت هم له سخت کړاوو اودربدری سره مخ شوی ، چې دهغـو ســاختماني امورواولوژسـتیکي چـاري بـه دټیکواوقراردادونوله لاري ترسره کولې .

دبصیرهاشمي ، په نامه دیوه شرکت مشرچې په خپل نامه یې نوموړی شـرکت فعالیـت لـري ، پـه دې ترڅ کې چې دخپـل ویـب پـاڼې (www.bhcc.af) پـه مخ دګردیز ، خوست ، اولوګر دامریکایي کمپاینونو پـه جوړولودیادشرکت رول مهم بولي ، په دې ورستیوکې یې دزینـت راډیوسره پـه خاصـه مرکـه کې پـه دې خبـره افسـوس ښـکاره کـړی چـې ولـې ، امریکایـان اوخارجي قواوي خپـل مراکز نـړوي . هغـه وایي پـه هـر امریکایي کمپـاین سلګونـه میلونـه ډالـر مصرف شـول اوافغـاني شـر کتونو، دطالبانودسـخت فشـار اوتهدیـد باوجود هغو ټیکوته اوږې ورکړي اوابادیې کړل ، ولې دبصیر هاشمي په خیال اوس ولې امریکایان هغـه اډې ددې پرځــای چــې وې نــړوي ، ملــي اردوتــه پــه اختیارکې نه ورکوي .

خوبصير هاشمي ، داخبره نکوي چې امريکايان، کوم دليل اوارتياديته مجبورکړي چې خپلې ځالې په خپل لاس ونړوي اوزياتره تجهيزاتوته اورونه واچوي اويايي کباړ کړي ؟

چې پرته دطالب اومجاهد دتورې له شرنګ اوانګازوڅخه يې بل هيڅ دليل اومجبوريت شاته ندی پروت ، بلکې هرڅوک پوهيږي چې هرکمپاين هره شپه دلسګونو توغنديو اوراکټي بريدونونښه اودهدف ځای وو اوپه ډيره سختي به امريکايي عسکر له خپل بارکونو بهرته راوتل .

که هرڅه وي ، دامريکايي کمپاينو ړنګيدل ، افغان مجاهد ولس ته يو غوره زيری او دزړه ارمان يې دی ، ځکه دکمپاينونو په وجودکې افغانان هره لحظه دناترسه اووحشي دښمن ديرغل ، چاپو او تهديد، له ويرې او خطراتوسره لاس اوګريوان دی ،پاتې شوه ، داخبره چې امريکايان به هغو ۹ سترو اډوته چې دکابل اجير رژيم سره دامنيتي تړون له مخې توافق ته رسيدلي اوهلته به خوندي شي ، فکرکوم چې دابه دخارجيانويوبل خيال پلو وي ،لکه څنګه چې الله تعالی ديرغلګرو خوري وري اډې اوکمپاينونه دړې وړې کړل ، دلويو ۹ اډولپاره هم مجاهدين هراخيز جهادي چمتوالي لري ، چې که الله ته منظوره وه ، يوه يوه به يې تخريبيږي اوديرغلګرولپاره به هماغه اډې ، ددوئ ګورستان جوړيږي . انشاالله تعالی

**رسول الله (ص) فرمايلي دي:**

هغه څوک به تاوان نه کوي چې استخاره کوي ، هغه څوک به پښېمانه نسي چې مشوره کوي او هغه څوک به محتاجه نسي چې په مصرف کې ميانه روي کوي. [رواه الطبراني]

**د يوه صحابي څو پوښتنې او د محمد(ص)ځوابونه:**

۱-غواړم چې الله تعالی په ما رحم وکړي؟ته پر نورو خلک رحم کوه.

۲-په ګناهونو کې کمی غواړمه؟ په کثرت سره استغفار کوه.

۳-زه د عزت چښتن جوړيدل غواړمه؟ د مخلوق په مخ کې لاس نيول پرېږده.

۴-د رزق پراختيا غواړمه؟ هميشه په اودس کې اوسه.

۵-کوم شی د دوزخ اوريخوي؟ روژه نيول.

۶-کوم شی د الله تعالی غصه سړوي؟ په پټه صدقه او صله رحمي.

۷-تر ټولو لوی بد کار څه شی دی؟ نا سم چلند او بد اخلاقي.

۹-غواړمه چې الله زما ستر او پرده وکړي؟ ته د نورو خلکو پرده کوه.

۱۰-رسوايې او شرمندګی نه بچ کيدل غواړمه؟ زنا نه ځان بچ کړه.

۱۱-د دعاګانو قبوليت غواړمه؟ حرام مه خوره.

۱۲-د الله تعالی د غصې نه بچ کيدل غواړمه؟په خلکو باندې غصه مه کوه.

۱۳-غواړمه چې د الله او رسول محبوب جوړ شمه؟ کوم شی چې د الله (ج) او پيغمبر (ص) محوب دی هغه خپل محبوب جوړ کړه.

۱۴-الله تعالی ته د قيامت په ورځ پاکيزه پيش شمه؟ د جنابت نه وروسته فوراً غُسل کوه. [کنزالعمال-۴۴۱۵۴].

# تــوره طــلا

## او د اسلامي امت ځار ځپلي حالت !!

د. عامر

الله سـبحانه و تعالى پـه انسانانو بې شميره نعمتونه لورولي او انسان د يـو نعمت هم پـه پـوره توګه شكر نده ويستى، پدې توګه د عربـي هيوادونـو پـه دښـتو او صحراګانو كې چې څاځكى اوبه نشـته مرغـي او نـور حيوانـات د تنـدي لـه لاسـه پـه هلاكـت تـه رسـيږي ، الله پـاك پكې پرتـو عـرب قومونـو تـه د تيلـو او نفتـو چينې روانې كړي.

يعني داسې يو ستر نعمت الله تعالى وركړ، چې د ځمكې ټول انسانان يې ورتـه محتـاج كـړل ،ټولو قومونو او هيوادونو پـه منډه منده كوشش پيل كړ ترڅود كوم عرب هيواد سره دوستانه اړيكي جوړې كړي او بيا ددې دوستي پـه نتيجـه كـې د دوي ددې قيمتـي سرمايې (تيلـو او نفتـو) چـې تـوره طلا ورته ويل كيږي استفاده

وكـړي ، نـو هغـه وو چـې دعربـو دښـتو او صـحراګانو پـه لـور د نـورو قومونـو او هيوادونـو بهيـر رامـات شـو او هـر چا ورسـره دښـو روابطـو سـاتلو وعدي اوژمني وركړې.

دغـه تـوره طـلا (تيـل او نفت) پـه ټولـو عربي هيوادونو كې د نوې او دقيقې احصايې له مخې تر ۲۰۵۰ كاله پورې كيداى شي خلاصي شي ،دغـه د تيلـو او نفتو ذخيري چې د اسلام او مسلمانانو د فايدى له پاره ورڅخـه استفاده ونشـوه نـوري وچيـږي ،ځكـه چـې د لسګونو كلونـو څخـه را پـدې خـوا امريكـايي، برتانوي، فرانسوي، كاناډايې ،الماني، روسي او نـورو كفري كمپنيوو څخـه هره ورځ پـه ميلونونو بيلره تيل يووړل، نور دوچيدولورتـه نيږدي كيږي، د يـادونى وړ ده چـې دغـه غربي او اروپـايي كمپنيـو دعربـو تيـل پـه مفتـه لـدې هيوادونو څخه وړي او ټوله ګټه او فايده ترې غـرب او اروپايې هيوادونو كړي.

د (۱۹۹۰) څخـه تـر (۱۹۹۹) پـورې غربـي او اروپـايې هيوادونـو يـو بيلـر تيـل پـه ۳۰ امريكـايي ډالـره لـه عربـي هيوادونـو څخـه وړل، پداسـي حـال كـې چـې پـه نړيـوال بـازار كـې د يـو بيلـر تيلـو قيمـت ۳۳۰ ـ ۳۰۰ ډالـرو پـورې وو او د (۱۹۹۹) څخـه تـر (۲۰۱۱) پـورې يـو بيلـر تيـل پـه ۵۰ يـا ۵۵ ډالـرو بانـدې وړي، پداسـې حـال كـې چـې پـه نړيـوال ماركيټ كـې د يـو بيلر تيلو قيمت ۴۷۰ نه تر ۵۰۰ ډالرو پورې وو

اوس يـې ورتـه يوڅـو ډالـره قيمـت پورتـه كـړي، خـو مطلب دا چې غربيـانوټول تيـل مفـت يـوړل ،پـه نـورو هيوادونـو يـې وپلـورل او يـايې ځانته ذخيره كړل

په ۲۰۰۰ میلادي کال کې د نړیوالو معتبرو احصایو او څیړنو په اساس دا معلومه شوه چې د عربي هیوادونو تیل او نفت تر ۲۰۵۰ کاله پورې په مکمل ډول له منځه ځي نو یوائې د متحده عرب اماراتو صدراعظم چې مسلکي انجینر ده فکر وکړو چې که تیل او نفت ختم شي نو زمونږ دا وچې دښتې او صحراګانې د نړیوالو له نظرونو څخه لویږي او مونږ په مکمل ډول د غربت لورته ځو او یو ځل بیا به د اوښانو چلولو ته مجبوریږو، نو فوراً یې د موقع څخه په استفادې سره دلوړپوړیزو ودانیو لوړولو او د نااشنا بلدینګونو او تجارتي او صنعتي ښارونو جوړولو باندې پیل وکړ ،تر څو د نړی صنعت ، تجارت ، او سیاحت پدې توګه دوبی او متحده عرب امارت راجلب کړي، چې تر یو زیات حده پدې کار وتوانیده او باقي پاتې عرب هیوادونو د غفلت په خوب ویده دي، یوائې متحده عرب امارات او سعودي عربستان به تر یوحده اقتصاد ولري ،ځکه چې متحده عرب اماراتو د صنعت او تجارت لپاره زمینه مساعده کړه او سعودی عربستان د حج په موسم کې د حاجیانو څخه دپام وړ عواید تر لاسه کوي، چې د حاجیانو څخه تر لاسه کیدونکي عواید اوپیسې به د تیلو او سروزرو په تناسب ۲۴٪ وي او باقي ۷٦٪ به د تیلو د لارې خساره کې وي

اوس را ځو دې ته چې که دعربو توره طلا الله مکړه دوچیدوپه درشل ودریږي ، غربیان به د تیلو د کمبود دا لوی او ستر مشکل په څه ډول حل اوپوره کوي ،نو ځکه غربي ماهیرینواوځمکه پیژندونکو د نوو تحقیقاتو او څیړنو په اساس ثابته کړي، چې د نړی د تیلو ۸۰٪ ضرورت به منځني اسیا هیوادونو لکه تاجکستان ، ازبکستان ، قرغزستان ، قزاقستان ، ترکمنستان، او په خپله افغانستان پوره کوي ،

ددې هیوادونو د تیلو او نفتو دا لویي او ستري ذخیري به استخراج شي او بیا به په مصرف ورسیږي نو دغه هیوادونه به د نړی معتبر ترین او سرمایدار ترین هیوادونه وګرځي چې پدې توګه د افغانستان د تیلو څخه علاوه د نورو زیرمو او معدنونو ذخیرې لا مکملې او روغي پاته دي ، ځکه نوورته د نړیوالو وحشي طاقتونو اوځینو ګاونډیو هیوادونو نیم زړه نشته چې څنګه ددغه هیواد خاوره لاس ته راوړي او پکې پروت باشهامته غیور او غیرتي افغان ولس غلام اویا له منځه یوسي اوپراخي زیرمي اوقیمتي شتمنیدوئ په واک کې واخلي .

چې له کابل رژیم سره دامریکا ورستی لاسلیک شوی امنیتي تړون یې ښکاره ثبوت اوبیلګه ده ، چې په مټ یې امریکایان اوپه مجموع کې غربیان دخپل اوږدمهالي شتون په ترڅ کې فکر کوي چې دافغانستان په زیرمواوشتمنیوبه خیټه واچوي ،

خوالله تعالی دتاریخ په هردورکې ددغې خاورې داسې وارثین اوپاسداران پیداکړي چې دهیوادله لویشت لویشت خاوري اودینې معتقداتوڅخه دسرپه بیه ساتنه اودفاع کوي ، خوداجانبوغلامي په هیڅ بیه نه منې ، چې دامریکااوناټودیرغل اوشوموعزایموپه مقابل کې روان جهاداوبیدریغي قرباني یې څرګندې بیلګې دي.

# ديو كامياب سياستوال يو څـــو ځانګړتيــاوې!

د- محمود سميع (القلم)

يومجرب اوكامياب سياستوال بائيدڅه ډول خصوصيات اوځانګړتياوي ولري ؟ دغې پوښتنې ته داوهاويو پوهنتون استاد ( دكتور محمودسريع ، القلم) يوشميرضروري مواد اويادښتونه كتاركړي چې په لوستو ارزي .

١ - ترټولو ړومبی بايد يومسلمان سياستوال په ديني پوهي سربيره په خپلې رشتي اوكاري شق كې تخصص اوپوره مهارت ولري ، نه داچې اول يې ځان دغې پوړۍ ته رسول غواړي اوبيا ورسته دتخصص هڅه كوي .

٢ - كوشش دې وكړي چې سياستوال په رسمي مجالسوكې له ليكل شوي متن څخه وينااوخبري وكړي ، ترڅو دبې ربطو اواوږدو ټكو مخه ونيول شي .

٣ - دېخوا په نسبت دې په قضاياوو كې راتلونكي ته ډيرتمركز وركړي ، چې بايد څه وكړي اوڅنګه پرمخ ولاړ شي.

۴ - عصبانيت اوتريخ مزاج ته بائيد رخصت ووايي

۵ دمجلس اورسمي غونډو ټاكل شوي وخت ته دې ژمن اوپربرابر وخت ځان ورورسوي .

٦ - دوګړو له ټولو اقشارو اوطبقو سره دې له نيږدې رابطه اوپه اړه دې معلومات ولري .

٧ - دهيواد دپرمختګ دې له ځان څخه عبارت نه بولي ، بلكې وايي دې چې هيواد په هاغه اودغه برخه كې دومره پيشرفت اوترقي كړي .

٨ كله يې چې اشتباه وكړه ، ځانته دې دبرائت جعلي شكل اوالفاظ نه جوړوي ، بلكې معذرت دې ووايي .

٩ - وړاندې تردې چې دسياست لوړې پوړۍ ته ورسيږي ، لږ ترلږه يې بائيد يوڅو هيوادونو ته سفركړي وي.

١٠ - په ٢۴ ساته كې بائيد ٢ اويا ١ سات ارومرو ورزش ترسره كړي.

١١ دخپل ولس اوماتحت هغو كسانو ته چې كارنامه يې كړي او د هيواد په سطحه يې ستړيا ګاللي وي، په خپله ورسره ووينې اوياپه خپل لاسليک تقديرنامې ورولیږي .

١٢ــ كوشش دې وكړي چې په خپلو رسمي ژبو سربيره يوه بين المللي ژبه هم زده اوعبور پرې ولري .

١٣ ـ اجتماعي برداشت ، عاطفي زړه او پراخ تندى په ولسونو كې دمحبوبيت كچه له بل هرڅه زياتوي .

١۴ - په هرحالت اوشرايطوكې بائيد له خلكو سره مودبانه چلند ولري .

١۵ - په ويناوو كې دې دقيق ارقام اومستند ټكي خامخا ځای كړي ، كنه ويناته به يې بيا څوک په دلچسپي غوږ كينږدي .

١٦ - لږ ترلږه دې دنړۍ د٢ سوو مهمو تاريخي څيرو له سوانحو باخبراوهغه دې لوستي وي .

١٧ دمسؤليت قبوليت دې، دخلكو دځواب ويلو په روحيه قبول كړي .

١٨ - له درواغو ويلو دې اوله خلكو سره له بدچلندڅخه دې پرهيز وكړي ، كنه دسياست بيړۍ به يې ډوبه وګرځي.

# له انګلستان سره ، داورپا ، روان کشمکش !

لطیف ـ عزم

اروپا ، په داسې حال کې دخپل ټولني په وحدت اوهمغږی ، حساب کوي ، چې دنوموړي ټولني په ۲۸ غړو کې ځیني هیوادونه شته ، چې په څرګندډول دسرکشی اومخالفت په هڅوکې دي اوان له ټولنې څخه دخپل غړیتوب په دوام له سره غور کولوته چمتوالی ښيي ، چې یوله دغو هیوادونو څخه داروپایي ټولني ترټولو مهم اوبارز غړی انګلستان دی.

دانګلستان سلطنتي رژیم ، چې اوس هم خپل انتخاباتي اوپارلماني ، سیستم په پادشاهي نظام استور اوپه خاص ډول د( ملکه ) له لارې اداره کیږي ، داروپایي ټولني لپاره په یوه جدي سردرد اوښتی.

داروپا ، دبروکسل په ورستی ناسته کې چې دروان کال داکتوبر میاشتي په ۲۳ او۲۴ نیټه ترسره شوه ، دانګلستان اوټولني ترمنځ یې روان کشمکش نه داچې کم اولږنکړ ، بلکې نوریې زیات اوپراخ وګرځاو.

اروپایي ، ټولنه تاکید کوي ، چې دانګلستان دکډوالوقوانین ، دکډوالو له حقوقو سره توپیراومغایرت لري ، باید عاجل اصلاحات اوتغیرات پکې راشي ، دغه راز ټولنه اصرار کوي چې انګلستان باید داروپاترټولو مهم شعار اواصل ته چې دغړو هیوادونو ترمنځ دې دپولې اوسرحد موضوع له منځه ولاړه شي اواتباع دې پرته له کومې ویزې اوپاسپورټ څخه ، تله اوراتله ولري.

همدغه ډول ټولنه ، له انګلستان څخه په کلکه غواړي چې داجرایوي امورو دپرمخ بیولو په خاطردې نوموړی هیواد دټولنې په ۲۵ فیصده لګښت منلو سربیره په کال کې ددوه ملیارده یورو فوق العاده منلو ته هم غاړه کیږدي.

انګلستان ، بیا استدلال کوي چې دکډوالو دحقوقو اوهم دسرحدي پولو په اړه دوی دټولني غوښتني دخپل هیواد دازادی دسلبولو په معنا بولي او منلوته یې چمتو ندی ، انګلستان دغه رازوایي چې په ټاکل شوي سهم اوفوق العاده لګښت کې بائید نور غړي هیوادونه ، په خاص ډول المان اوفرانسه هم ونډه واخلي ، ځکه المان اوفرانسه له ټولني څخه هومره ګټه پورته کوي ،څومره یې چې انګلستان اخلي.

داروپااوانګلستان ، ترمنځ یوبل مهم اوجدي مشکل اوبحران هغه مهال راپورته شو ، چې دبرتانیي ، ږومبي وزیر( کامرون ) په دې ورستیوکې په ډیرصراحت په ډاګه کړه ، چې کچیرې  هغه درراوان کال په ټاکنو کې بریالی شو ، نو په ۲۰۱۷ کال کې به دیوې سرتاسري

ټولپوښتني په ترخ کې تصميم ونيسي ، چې ايا انګلستان په اروپايي ټولنه کې لدې ورسته پاتې شي اوکه ترې ووځي.

دبرتانيي ړومبي ، وزير داهم ويلي: اروپايي ټولني ته داحق نه ورکوي چې دنوموړي هيواد په قضايي اموروکې لاسوهنه وکړي ، بلکې هغه ددې غوښتنکی دی چې دانګلستان قضا اوپارلمان بايد داروپايي ټولنې دهر هغه حکم اومصوبي په مقابل کې چې دانګلستان داخلي خودمختاري په خطرکې اچوي ، دويتو حق ولري.

دبرتانيي ، دړومبي وزير دغه اعلان اوتصميم ، اروپايي ټولنې سخت محکوم کړ اوهغه يې دټولنې په سالميت اووحدت باندي مهم ګوزار وباله.

کتونکي په دې اند دي ، کچيرې د انګلستان اواروپايي ټولنې ترمنځ روان بحران همداسې روان اودوام پيداکړي ، ممکن په پاتې ۲۷ غړو هيوادونو کې هم يو ډول شورش رامنځته شي اوپه خاص ډول هغه هيوادونه چې اقتصادي لاسته راوړنې يې پيکه اوکمزوري دي اويايه دې باور دي چې دګټي په ځای يې زيان زيات دی ،کيدای شي هغوئ دانګلستان په پله پل کيږدي !!؟

ويل کيږي ، چې انګلستان اصلا داروپا له هغه تصويب سره چې دمالياتوکچه دې دمالي معاملاتو په تناسب وضع شي ، سخت مخالفت په ډاګه کړ.فرانسه




اوالمان په ډيرجديت دياد تصويب دعملي کولو په لټه کې شول، انګلستان داروپا دنوروغړوپه نسبت ددغسې مالي معاملاتويو تود اوبيساری بازار دی ، که چيري انګلستان داروپا دتصويب له مخې ماليات وضعه اوادايې کړي ، نوله يوې خوابه دخلکو اعتراضونه راوپاروي ، له بل اړخه به هغه بانکي اومالي مراکز چې په لندن کې متمرکز دي ، نورې نړۍ ته مخه اوانتقال شي

همدارنګه ، انګلستان داروپا دمشترکي پيسي ( يورو ) له جاري کولو سره هم چندان جوړ نه وو ،انګلستان خپل تاريخي اوسياسي قدامت اوتجارتي ځواکمنتيا ، ددې حق داره بولي ، چې انګلستاني پيسه ، ( پونډ ) دې په نوموړي هيوادکې په خپل حال رايجه پاتې شي ، خو داروپا نور غړي ورسره په همدغه ټکي کې کلک مخالفت لري اودټولنې داقتصادي پرمختګ په حق کې يې منفي حرکت بولي !!



# د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو د کميسيون خبرتيا

بسم الله الرحمن الرحيم

د افغانستان اسلامي امارت د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون د افتاء او د قضاء د تخصص اداره فعاله کړې چې باقاعده افتتاح يې شوې ده، ډېر جامع او معياري نصاب ورته تيار کړل شوی دی

او ښه تکړه، تجربه لرونکي او ماهرين د فن علماء کرام او استاذان ورته ټاکل شوې دي، د ځای، إعاشې او إباتې او نورو ټولو ضرورياتو مکمل انتظام شوی ده.

د دغه تخصص لپاره لاندې شرائط او ضوابط په پام کې نيول شوي دي:

(۱) په دغه تخصص کې هغه اشخاص اخيستل کېږي چې د کومې معلومې ديني مدرسې څخه په اعلی درجه فارغ التحصيل وي، او ددې تر څنګ په علم فقه او علم اصول فقه کې د ښه استعداد درلودونکي وي، او هم د ښه ليکلو او انشاء صلاحيت ولري.

(۲) په تخصص کې د شامليدونکي شخص لپاره لازمي دي چې د کومې مدرسې څخه فارغ شوی وي د هغې مدرسې د مهتمم يا ناظم لخوا دې دده د اخلاقي او تعليمي حالت تصديق نامه دده سره موجوده وي.

(۳) کوم شخص چې د پوره وخت تيرولو يعنې د تخصص تر پايه د پاته کېدلو پخه امادګي ظاهره کړي هغه ته به داخله ورکول کېږي، او د پوره وخت تيرولو تحريري ضمانت به يې يو مشر عالم کوي.

(۴) په لاندې کتابونو کې به د داخلې تقريري امتحان اخيستل کېږي:

صحيح البخاري، بيضاوي يا جلالين، هدايه کامل، نورالانوار يا حسامي، شرح العقائد، مختصر المعاني، مقامات حريري، سلم العلوم، او ميبذي.

او ددې څخه علاوه د ليکلو او انشاء د صلاحيت امتحان به هم اخيستل کېږي.

(۵) کوم کسان چې د مذکوره شرائطو سره برابر وي او د داخلې په امتحان کې کامياب او داخله ورکول شي هغوی ته به د خوراک څخه علاوه ماهانه يو معلوم مقدار نقدي وظيفه هم ورکول کېږي.

(۶) د تخصص د شاګردانو د مشاغلو تقسيم اوقات به د نورو طلباؤ په شان نه وي بلکه د ضروري آرام او د صلوة او طعام د اوقاتو څخه غير به نور ټول اوقات د تخصص په درس، مطالعه او د افتاء په تمرين کې لګوي.

(۷) د تخصص شاګردان به د تخصص په درس او مطالعه کې د شاملو کتابونو د سه ماهي، شش ماهي او سالانه درې واړو امتحانونو د ورکولو پابند وي.

(۸) د تخصص شاګردانو ته به په اخري کال کې د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو د کميسيون لخوا موضوعات او عنوانات انتخاب کېږي دوی به هر يو په جدا جدا موضوع او عنوان مقاله ليکي.

(۹) په پای کې به کامياب شاګردانو ته د افتاء او د قضاء د تخصص ښه معتبر او معياري سندونه (شهادت نامې) ورکول کېږي.

د داخلې اراده لرونکي حضرات دې د هر ولايت اړوند د تعليم او تربيې له مسول سره رابطه وکړي او معلومات دې ترلاسه کړئ

# srak

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُم مِّنَ الْحَقِّ (الممتحنة:۱)

## د افغانستان اسلامي امارت

(د افغانستان د خرڅلاو قرارداد)

ګوډاګی

## کلیزه ۱۴۳۶هـق

2014-2015م

۱۳۹۳-۱۳۹۴هـش

### محرم الحرام ۱۴۳۶هـق — عقرب (لړم) قوس (لیندۍ) ۱۳۹۳هـش — October November 2014

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | 25 ۱ ۲ | Nov ۸ ۹ | 8 ۱۵ ۱۷ | 15 ۲۲ ۲۳ | 22 ۲۹ ۳۰ |
| یکشنبه | Sun | 26 ۲ ۳ | 2 ۹ ۱۰ | 9 ۱۶ ۱۷ | 16 ۲۳ ۲۴ | 23 ۳۰ لیندۍ |
| دوشنبه | Mon | 27 ۳ ۴ | 3 ۱۰ ۱۱ | 10 ۱۷ ۱۸ | 17 ۲۴ ۲۵ | |
| سه شنبه | Tue | 28 ۴ ۵ | 4 ۱۱ ۱۲ | 11 ۱۸ ۱۹ | 18 ۲۵ ۲۶ | |
| چهارشنبه | Wed | 29 ۵ ۶ | 5 ۱۲ ۱۳ | 12 ۱۹ ۲۰ | 19 ۲۶ ۲۷ | |
| پنجشنبه | Thu | 30 ۶ ۷ | 6 ۱۳ ۱۴ | 13 ۲۰ ۲۱ | 20 ۲۷ ۲۸ | |
| جمعه | Fri | 31 ۷ ۸ | 7 ۱۴ ۱۵ | 14 ۲۱ ۲۲ | 21 ۲۸ ۲۹ | |

ـ د محرم ۱۵مه ۱۴۱۵هـ.ق په کندهار کې د اسلامي امارت د تاسیس ورځ.

### صفر المظفر ۱۴۳۶هـق — قوس (لیندۍ) ۱۳۹۳هـش — November December 2014

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 29 ۶ ۷ | 6 ۱۳ ۱۴ | 13 ۲۰ ۲۱ | 20 ۲۷ ۲۸ |
| یکشنبه | Sun | | 30 ۷ ۸ | 7 ۱۴ ۱۵ | 14 ۲۱ ۲۲ | 21 ۲۸ ۲۹ |
| دوشنبه | Mon | 24 ۱ ۲ | Dec ۸ ۹ | 8 ۱۵ ۱۷ | 15 ۲۲ ۲۳ | 22 ۲۹ ۳۰ |
| سه شنبه | Tue | 25 ۲ ۳ | 2 ۹ ۱۰ | 9 ۱۶ ۱۷ | 16 ۲۳ ۲۴ | |
| چهارشنبه | Wed | 26 ۳ ۴ | 3 ۱۰ ۱۱ | 10 ۱۷ ۱۸ | 17 ۲۴ ۲۵ | |
| پنجشنبه | Thu | 27 ۴ ۵ | 4 ۱۱ ۱۲ | 11 ۱۸ ۱۹ | 18 ۲۵ ۲۶ | |
| جمعه | Fri | 28 ۵ ۶ | 5 ۱۲ ۱۳ | 12 ۱۹ ۲۰ | 19 ۲۶ ۲۷ | |

ـ د قوس ۵مه ۱۳۸۰ل کال د مزار شریف په قلعه جنګي کې د سلګونو مجاهدینو د ډله ایز شهادت ورځ.
ـ دقوس ۱۳مه ۱۳۸۰ل دبن کرغېړنه ناسته. ـ د قوس ۱۴مه ۱۳۸۷ل کال د څرخي پله په زندان کې پر مظلومو زندانیانو
د کابل د اجیرو عسکرو په بې رحمانه برید چې په ترڅ کې یې ۳۶ تنه بې ګناه زندانیان شهیدان او لسګونه ژوبل شول.

### ربیع الاول ۱۴۳۶هـق — جدي (مرغومی) ۱۳۹۳هـش — December January 2014-2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 27 ۵ ۵ | 3 ۱۲ ۱۲ | 10 ۱۹ ۱۹ | 17 ۲۶ ۲۶ |
| یکشنبه | Sun | | 28 ۶ ۶ | 4 ۱۳ ۱۳ | 11 ۲۰ ۲۰ | 18 ۲۷ ۲۷ |
| دوشنبه | Mon | | 29 ۷ ۷ | 5 ۱۴ ۱۴ | 12 ۲۱ ۲۱ | 19 ۲۸ ۲۸ |
| سه شنبه | Tue | 23 ۱ مرغومی | 30 ۸ ۸ | 6 ۱۵ ۱۵ | 13 ۲۲ ۲۲ | 20 ۲۹ ۲۹ |
| چهارشنبه | Wed | 24 ۲ ۲ | 31 ۹ ۹ | 7 ۱۶ ۱۶ | 14 ۲۳ ۲۳ | 21 ۳۰ ۳۰ |
| پنجشنبه | Thu | 25 ۳ ۳ | Jan ۱۰ ۱۰ | 8 ۱۷ ۱۷ | 15 ۲۴ ۲۴ | |
| جمعه | Fri | 26 ۴ ۴ | 2 ۱۱ ۱۱ | 9 ۱۸ ۱۸ | 16 ۲۵ ۲۵ | |

د ربیع الاول ۱۲، په مشهور قول (د اسلام دستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ مبارک میلاد)
۶.جدي ۱۳۵۸ل هـ کال پر افغانستان د سرو لښکرو د یرغل ورځ

### ربیع الثاني ۱۴۳۶هـق — دلو (سلواغه) ۱۳۹۳هـش — January February 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 24 ۳ ۳ | 31 ۱۰ ۱۰ | 7 ۱۷ ۱۷ | 14 ۲۴ ۲۴ |
| یکشنبه | Sun | | 25 ۴ ۴ | Feb ۱۱ ۱۱ | 8 ۱۸ ۱۸ | 15 ۲۵ ۲۵ |
| دوشنبه | Mon | | 26 ۵ ۵ | 2 ۱۲ ۱۲ | 9 ۱۹ ۱۹ | 16 ۲۶ ۲۶ |
| سه شنبه | Tue | | 27 ۶ ۶ | 3 ۱۳ ۱۳ | 10 ۲۰ ۲۰ | 17 ۲۷ ۲۷ |
| چهارشنبه | Wed | | 28 ۷ ۷ | 4 ۱۴ ۱۴ | 11 ۲۱ ۲۱ | 18 ۲۸ ۲۸ |
| پنجشنبه | Thu | 22 ۱ سلواغه | 29 ۸ ۸ | 5 ۱۵ ۱۵ | 12 ۲۲ ۲۲ | 19 ۲۹ ۲۹ |
| جمعه | Fri | 23 ۲ ۲ | 30 ۹ ۹ | 6 ۱۶ ۱۶ | 13 ۲۳ ۲۳ | |

ـ د دلوې ۲۶ هیواد کې د مجاهدینو په لاس د سرو لښکرو د ماتې ورځ

### جمادی الاولی ۱۴۳۶هـق — دلو (سلواغه) حوت (کب) ۱۳۹۳هـش — February March 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 21 ۲ کب | 28 ۹ ۸ | 7 ۱۶ ۱۵ | 14 ۲۳ ۲۲ |
| یکشنبه | Sun | | 22 ۳ ۲ | Mar ۱۰ ۹ | 8 ۱۷ ۱۷ | 15 ۲۴ ۲۳ |
| دوشنبه | Mon | | 23 ۴ ۳ | 2 ۱۱ ۱۰ | 9 ۱۸ ۱۷ | 16 ۲۵ ۲۴ |
| سه شنبه | Tue | | 24 ۵ ۴ | 3 ۱۲ ۱۱ | 10 ۱۹ ۱۸ | 17 ۲۶ ۲۵ |
| چهارشنبه | Wed | | 25 ۶ ۵ | 4 ۱۳ ۱۲ | 11 ۲۰ ۱۹ | 18 ۲۷ ۲۶ |
| پنجشنبه | Thu | | 26 ۷ ۶ | 5 ۱۴ ۱۳ | 12 ۲۱ ۲۰ | 19 ۲۸ ۲۷ |
| جمعه | Fri | 20 ۱ ۳۰ | 27 ۸ ۷ | 6 ۱۵ ۱۴ | 13 ۲۲ ۲۱ | 20 ۲۹ ۲۸ |

ـ د حوت ۳مه ۱۳۵۸ل.هـ کال د کمونیزم او شوروي یرغل پر وړاندې د کابل تاریخي پاڅون.
ـ دحوت ۱۲مه ۱۳۸۰ل.هـ کال په پکتیا کې د امریکایي یرغل په وړاندې د شاهي کوټ تاریخي جګړه
ـ د حوت ۲۴مه ۱۳۵۷ل.هـ کال په هرات کې د کمونستانو په وړاندې ولسي پاڅون او د ۲۴ زره بې ګناه مسلمانانو شهادت.

### جمادی الثانیة ۱۴۳۶هـق — حوت (کب) حمل (وری) ۱۳۹۳-۱۳۹۴هـش — March April 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | 21 ۱ ۲۹ | 28 ۸ ۷ | 4 ۱۵ ۱۴ | 11 ۲۲ ۲۱ | 18 ۲۹ ۲۸ |
| یکشنبه | Sun | 22 ۲ وری | 29 ۹ ۸ | 5 ۱۶ ۱۵ | 12 ۲۳ ۲۲ | 19 ۳۰ ۲۹ |
| دوشنبه | Mon | 23 ۳ ۲ | 30 ۱۰ ۹ | 6 ۱۷ ۱۷ | 13 ۲۴ ۲۳ | |
| سه شنبه | Tue | 24 ۴ ۳ | 31 ۱۱ ۱۰ | 7 ۱۸ ۱۷ | 14 ۲۵ ۲۴ | |
| چهارشنبه | Wed | 25 ۵ ۴ | Apr ۱۲ ۱۱ | 8 ۱۹ ۱۸ | 15 ۲۶ ۲۵ | |
| پنجشنبه | Thu | 26 ۶ ۵ | 2 ۱۳ ۱۲ | 9 ۲۰ ۱۹ | 16 ۲۷ ۲۶ | |
| جمعه | Fri | 27 ۷ ۶ | 3 ۱۴ ۱۳ | 10 ۲۱ ۲۰ | 17 ۲۸ ۲۷ | |

ـ د حمل ۱۶مه ،۱۳۷۵ل کال په کندهار کې د افغانستان د ۱۵۰۰ علماء کرامو لخوا محترم ملا محمد عمر مجاهد سره د بیعت کولو او د امیر المؤمنین په توګه یې د ټاکلو ورځ.

### رجب المرجب ۱۴۳۶هـق — حمل (وری) ثور (غوایی) ۱۳۹۴هـش — April May 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 25 ۶ ۴ | 2 ۱۳ ۱۱ | 9 ۲۰ ۱۸ | 16 ۲۷ ۲۵ |
| یکشنبه | Sun | | 26 ۷ ۵ | 3 ۱۴ ۱۲ | 10 ۲۱ ۱۹ | 17 ۲۸ ۲۷ |
| دوشنبه | Mon | 20 ۱ ۳۰ | 27 ۸ ۶ | 4 ۱۵ ۱۳ | 11 ۲۲ ۲۰ | 18 ۲۹ ۲۷ |
| سه شنبه | Tue | 21 ۲ ۳۱ | 28 ۹ ۷ | 5 ۱۶ ۱۴ | 12 ۲۳ ۲۱ | |
| چهارشنبه | Wed | 22 ۳ غوایی | 29 ۱۰ ۸ | 6 ۱۷ ۱۵ | 13 ۲۴ ۲۲ | |
| پنجشنبه | Thu | 23 ۴ ۲ | 30 ۱۱ ۹ | 7 ۱۸ ۱۷ | 14 ۲۵ ۲۳ | |
| جمعه | Fri | 24 ۵ ۳ | May ۱۲ ۱۰ | 8 ۱۹ ۱۷ | 15 ۲۶ ۲۴ | |

ـ د ثور ۵مه ۱۳۹۰ل کال د کندهار له محبسه د مجاهدینو د یو جهادي تکتیک په ترڅ کې د (۵۴۱) زنداني مجاهدینو د خلاصون ورځ. ـ د ثور ۷مه ۱۳۵۷ل کال د کمونستانو د کودتا ورځ
ـ د ثور ۸مه ۱۳۷۱ل کال د اسلامي انقلاب د بري ورځ.

### شعبان المعظم ۱۴۳۶هـق — ثور (غوایی) جوزا (غبرګولی) ۱۳۹۴هـش — May June 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 23 ۵ غبرګولی | 30 ۱۲ ۸ | 6 ۱۹ ۱۵ | 13 ۲۶ ۲۲ |
| یکشنبه | Sun | | 24 ۶ ۲ | 31 ۱۳ ۹ | 7 ۲۰ ۱۷ | 14 ۲۷ ۲۳ |
| دوشنبه | Mon | | 25 ۷ ۳ | Jun ۱۴ ۱۰ | 8 ۲۱ ۱۷ | 15 ۲۸ ۲۴ |
| سه شنبه | Tue | 19 ۱ ۲۸ | 26 ۸ ۴ | 2 ۱۵ ۱۱ | 9 ۲۲ ۱۸ | 16 ۲۹ ۲۵ |
| چهارشنبه | Wed | 20 ۲ ۲۹ | 27 ۹ ۵ | 3 ۱۶ ۱۲ | 10 ۲۳ ۱۹ | 17 ۳۰ ۲۷ |
| پنجشنبه | Thu | 21 ۳ ۳۰ | 28 ۱۰ ۲ | 4 ۱۷ ۱۳ | 11 ۲۴ ۲۰ | |
| جمعه | Fri | 22 ۴ ۳۱ | 29 ۱۱ ۷ | 5 ۱۸ ۱۴ | 12 ۲۵ ۲۱ | |

ـ دشعبان المعظم میاشت د هجرت دویم کال د قبلې تحویل. دجهاد او روژې فرضیت ـ د جوزا ۴مه ۱۳۴۹ل کال دکابل په پل خشتي مسجد کې د واکمن نظام د شرعي سرغړونو او کمونستي افکارو پر ضد د افغانستان د علماء کرامو مظاهره.
ـ ۱۴ جوزا ۱۳۵۸ل هـ کال کې د څرخي پل د زندانیانو پاڅون چې (۴۰) کسه یکې شهیدان شول.

### رمضان المبارك ۱۴۳۶هـق — جوزا (غبرګولی) سرطان (چنګاښ) ۱۳۹۴هـش — June July 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 20 ۳ ۲۹ | 27 ۱۰ ۵ | 4 ۱۷ ۱۲ | 11 ۲۴ ۱۹ |
| یکشنبه | Sun | | 21 ۴ ۳۰ | 28 ۱۱ ۶ | 5 ۱۸ ۱۳ | 12 ۲۵ ۲۰ |
| دوشنبه | Mon | | 22 ۵ ۳۱ | 29 ۱۲ ۷ | 6 ۱۹ ۱۴ | 13 ۲۶ ۲۱ |
| سه شنبه | Tue | | 23 ۶ چنګاښ | 30 ۱۳ ۸ | 7 ۲۰ ۱۵ | 14 ۲۷ ۲۲ |
| چهارشنبه | Wed | | 24 ۷ ۲ | Jul ۱۴ ۹ | 8 ۲۱ ۱۷ | 15 ۲۸ ۲۳ |
| پنجشنبه | Thu | 18 ۱ ۲۷ | 25 ۸ ۳ | 2 ۱۵ ۱۰ | 9 ۲۲ ۱۷ | 16 ۲۹ ۲۴ |
| جمعه | Fri | 19 ۲ ۲۸ | 26 ۹ ۴ | 3 ۱۶ ۱۱ | 10 ۲۳ ۱۸ | |

د رمضان المبارک ۱۷مه د هجرت دویم کال کې د بدر غزا
د رمضان المبارک ۲۷مه، ۱۴۲۲هـق د تورې بورې تاریخي معرکه

### شوال المکرم ۱۴۳۶هـق — سرطان (چنګاښ) اسد (زمری) ۱۳۹۴هـش — July August 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | 15 ۳۰ ۲۳ | 18 ۲ ۲۶ | 25 ۹ ۲ | Aug ۱۶ ۹ | 8 ۲۳ ۱۷ |
| یکشنبه | Sun | | 19 ۳ ۲۷ | 26 ۱۰ ۳ | 2 ۱۷ ۱۰ | 9 ۲۴ ۱۷ |
| دوشنبه | Mon | | 20 ۴ ۲۸ | 27 ۱۱ ۴ | 3 ۱۸ ۱۱ | 10 ۲۵ ۱۸ |
| سه شنبه | Tue | | 21 ۵ ۲۹ | 28 ۱۲ ۵ | 4 ۱۹ ۱۲ | 11 ۲۶ ۱۹ |
| چهارشنبه | Wed | | 22 ۶ ۳۰ | 29 ۱۳ ۶ | 5 ۲۰ ۱۳ | 12 ۲۷ ۲۰ |
| پنجشنبه | Thu | | 23 ۷ ۳۱ | 30 ۱۴ ۷ | 6 ۲۱ ۱۴ | 13 ۲۸ ۲۱ |
| جمعه | Fri | 17 ۱ ۲۵ | 24 ۸ زمری | 31 ۱۵ ۸ | 7 ۲۲ ۱۵ | 14 ۲۹ ۲۳ |

ـ د شوال المکرم لومړۍ ورځ د کوچني اختر مبارکه ورځ.

### ذی قعدة الحرام ۱۴۳۶هـق — اسد (زمری) سنبله (وږی) ۱۳۹۴هـش — August September 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 22 ۷ ۳۰ | 29 ۱۴ ۶ | 5 ۲۱ ۱۳ | 12 ۲۸ ۲۰ |
| یکشنبه | Sun | 16 ۱ ۲۴ | 23 ۸ ۳۱ | 30 ۱۵ ۷ | 6 ۲۲ ۱۴ | 13 ۲۹ ۲۱ |
| دوشنبه | Mon | 17 ۲ ۲۵ | 24 ۹ وږی | 31 ۱۶ ۸ | 7 ۲۳ ۱۵ | |
| سه شنبه | Tue | 18 ۳ ۲۶ | 25 ۱۰ ۲ | Sep ۱۷ ۹ | 8 ۲۴ ۱۷ | |
| چهارشنبه | Wed | 19 ۴ ۲۷ | 26 ۱۱ ۳ | 2 ۱۸ ۱۰ | 9 ۲۵ ۱۷ | |
| پنجشنبه | Thu | 20 ۵ ۲۸ | 27 ۱۲ ۴ | 3 ۱۹ ۱۱ | 10 ۲۶ ۱۸ | |
| جمعه | Fri | 21 ۶ ۲۹ | 28 ۱۳ ۵ | 4 ۲۰ ۱۲ | 11 ۲۷ ۱۹ | |

ـ د اسد ۲۸مه ۱۲۹۸ل کال له انګریزانو څخه د افغانستان د خپلواکۍ اخیستلو ورځ.

### ذی الحجة الحرام ۱۴۳۶هـق — سنبله (وږی) میزان (تله) ۱۳۹۴هـش — September October 2015

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شنبه | Sat | | 19 ۶ ۲۷ | 26 ۱۳ ۳ | 2 ۲۰ ۱۰ | 9 ۲۷ ۱۷ |
| یکشنبه | Sun | | 20 ۷ ۲۸ | 27 ۱۴ ۴ | 3 ۲۱ ۱۱ | 10 ۲۸ ۱۸ |
| دوشنبه | Mon | 14 ۱ ۲۲ | 21 ۸ ۲۹ | 28 ۱۵ ۵ | 4 ۲۲ ۱۲ | 11 ۲۹ ۱۹ |
| سه شنبه | Tue | 15 ۲ ۲۳ | 22 ۹ ۳۰ | 29 ۱۶ ۶ | 5 ۲۳ ۱۳ | 12 ۳۰ ۲۰ |
| چهارشنبه | Wed | 16 ۳ ۲۴ | 23 ۱۰ ۳۱ | 30 ۱۷ ۷ | 6 ۲۴ ۱۴ | |
| پنجشنبه | Thu | 17 ۴ ۲۵ | 24 ۱۱ تله | 31 ۱۸ ۸ | 7 ۲۵ ۱۵ | |
| جمعه | Fri | 18 ۵ ۲۶ | 25 ۱۲ ۲ | Oct ۱۹ ۹ | 8 ۲۶ ۱۷ | |

ـ د میزان ۶مه ۱۳۷۵ل کال، د طالبانو د اسلامي تحریک په لاس، د کابل فتحه. ـ دذی الحجې ۹مه د عرفې ورځ دذی الحجې ۱۰مه، دلوی اختر لومړۍ ورځ. د میزان ۱۵مه ۱۳۸۰ل کال پر افغانستان د امریکا یرغل.
ـ د تلې په ۷مه، ۱۳۹۳ل کال، د کابل ګوډاګي رژیم سره د امریکا د کرغېړن امنیتي تړون لاسلیک

**مجاهد ولسه!!** داشغال په وړاندې ستاسو جهاد او بې دریغه قربانیو، د الله جل جلاله په نصرت امریکایان، د هغوئ غربي ایتلافیان او داخلي ملاتړي، ټول له شکست سره مخامخ کړي دي؛ دا چې خارجي یرغلګر له ماتې سره مخامخ دي، اوس ډېر په دې هڅه کې دي، چې د افغان ولس ترمنځ د بېلابېلو تنظیمي، قومي، منطقوي او مذهبي اختلافاتو په راژوندي کولو سره ،له افغانانو څخه د خپل شکست بدل واخلي. زموږ ویښ ولس او مجاهدین باید کوښښ وکړي ،چې د دښمن دغه توطئه هم ، د خپل وحدت په ساتلو سره شنډه، او له ټولو هغو کارونو څخه په کلکه ځان وساتي ، کوم چې د افغان مسلمان ولس وحدت ته زیان رسوي!

د عالیقدر امیرالمؤمنین له وینا وو څخه

نشر: امارت اسلامی افغانستان کمیسیون امور فرهنګی